د ۱۳۹٤ش کال څلرمه ګڼه

(مېزان - عقرب)

# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



د حضرت علامه حبو اخندزاده مقبره ودانه سوه

محمد معصوم هوتک

# دحضرت علامه حبواخندزاده مقبره ودانه سوه

حضرت علامه حبیب الله کاکړ (۱۲۱۳ – ۱۲۶۵ق) رحمة الله علیه مشهور په حبو اخندزاده د ملا فیض الله کاکړ زوی او د مسه خېل ملا بابړ مدرِّس لمسی وو چي د خپل عصر له اجله وو علماوو او محققینو څخه ګڼل کېدی. ملا بابړ مدرِّس د هوتکو د پاچهۍ په پای کي له کاکړستان څخه د کندهار ښار ته را لېږدېدلی وو. زوی ئې ملا فیض الله کاکړ د احمد شاهي عصر د فاضلو علماوو په ډله کي د نامه څښتن وو او د اشرف الوزراء شاولیخان بامیزي د کورنۍ غړو ته ئې د استادۍ وظیفه هم پر غاړه وه.

علامه حبیب الله کاکړ چي د خپل وخت په علمي محافلو کي په (فاضل کندهاري) سره مشهور وو، د همدغه ملا فیض الله کاکړ زوی کېدی. د کندهار ښار د ډنډ چوک ته نږدې چي د فاضل کندهاري په نامه لېسه همدا اوس هم فعاله ده، د همدغه نامور عالم نامه ته منسوبه ده. علامه حبو اخندزاده په معقولو او منقولو کي د خپل وخت مرجع بلل کېدی. د علومو ډېري سخر غوټې د ده په محققانه ګوتو خلاصي سوي وې او د مصنفاتو شمېر ئې تر دېرشو اوښتی وو. د دغه محقق عالم په باب ما (هوتک) پخپل کتاب (درنه کورنۍ) کي په تفصیل سره خبري کړي دي چي محترم لوستونکي دې هورې ولولي.

له ډېر وخت راهیسي زما پرله پسې هڅه دا وه چي د کندهار د علمي حوزې د مشهورو مشاهیرو د مقبرو ودانولو ته سرکاري مقامات متوجه کاندم او په بېلابېلو وختو کي مي د کندهار د اطلاعات او کلتور مسئولینو او د وخت والیانو ته د دغه ارزښتناک کار یادوني کړي وې چي په هغو کي مي شهید عبدالمجید بابي او شهید عبدالقدیم پټیال ته د دغو مشاهیرو د نومو لیستونه هم ورکړي ول. د دې تر څنګ مي خپلي شخصي هڅي هم هیڅکله نه وې سپمولي. له نېکه مرغه زما د شخصي هلوځلو او په خارج کي د اوسېدونکو کندهاریو منورینو د مالي مرستو او د ګران روهیال او شهید پټیال د مننه و تر ړو په نتیجه کي پر دې بریالی سوم چي د وطن د ستر فولکلوریست ارواښاد محمد ګل نوري مقبره ودانه کاندم. د پیر محمد کاکړ د قبر جوړولو هڅي مي څو کاله په جدیت سره تعقیب کړې. خو بریالی سوی لا نه یم. د سږکال (۲۰۱۵ع) په سپتمبر کي چي د کوټې له سیمینار څخه کندهار ته ولاړم، نو مي د خپل سفر په پروګرام کي د علامه حبواخندزاده د قبر د ترمیم او ودانولو کار هم شامل وو. په کندهار کي مي د خپل سفر په لومړي سر کي یوه ورځ په عینو مېنه کي د الحاج حمدالله صحاف په کتابتون کي له ښاغلو عزیزالله خان کرزي او کاکا اسدالله خان پوپل سره د نورو خبرو په ترڅ کي د دغي مقبرې د ودانولو مسئله هم یاده کړه. کاکا اسدالله خان سمدستي خپل تیاری وښود او ښاغلي عزیزالله خان کرزي هم د دې کار پر اهمیت او ضرورت باندي مبسوطي خبري وکړې.

زما شا غره ته تکیه سوه او په داسبا مي اراده وکړه چي دغه مقبره له نږدې وګورم او خپل ځان ډاډمن کاندم چي نه ګانه نوموړې هدیره د زورواکو له خوا لاندي سوې نه وي. زه دغي هدیرې او مقبرې ته له نن څخه اووه دېرش کاله پخوا هغه وخت تللی وم چي د عبدالرؤف واسعي په نامه مو د علامه حبو اخندزاده ځوانیمرګ کودی خاورو ته سپاره. د عبدالرؤف واسعي کورنی لقب (ګل) وو او په نیویارک کي د یوه تورپوستي له خوا ووژل سو. جنازه ئې کندهار ته راوړل سوه او د خپل لوی نیکه علامه حبو اخندزاده د قبر څنګ ته ښخ سو. قبر ئې اوس هم معلوم دئ. هدیرې ته د تګ خبره مي له ښاغلي عبیدالله جان (بابا) سره شریکه کړه. هغه راته وویل چي یوه ورځ به د مرحوم عبدالباري واسعي د زوی شاه جان سره یو ځای هدیرې ته ولاړ سو.

عبیدالله جان (بابا) د مرحوم سلطان محمد خان مشهور په لالوجان زوی او د مرحوم میرزا جان محمد خان هوتک لمسی دئ. شاه جان هم د علامه حبواخندزاده کودی کېږي. د لوی اختر په دریمه (د ۲۰۱۵ع کال د سپتمبر پر ۲۶ مه) سهار وختي عبدالله جان او شاه جان کور ته په موټر کي راغلل او زه ئې هدیرې ته بوتلم. د حبواخندزاده پلرنۍ هدیره د احمد شاهي کندهار د زړې عیدګاه ختیځ ته پرته وه. اوس په دغه عیدګاه کي د محمود طرزي لېسه فعاله ده او د عیدګاه سړک پر ختیځه څنډه دوکانونه ودان سوي دي او د دوکانو شا ته هدیرې خلکو لاندي کړي او کورونه ئې پر جوړ کړي دي دغه سړک اوس د برېښناکوټ سړک نومېږي او د حبواخندزاده هدیره د دغه سړک د ختیځي غاړې د دوکانو او کورو شا ته ځېرمه پرته ده. موږ هدیرې ته د لویي ویالې له خوا راتا سوو. د حبو اخندزاده قبر ته مي دوعا وکړه او په هماغه شان مي ومونډ چي ما اووه دېرش پخوا لیدلی وو.

د سپتمبر پر اووه ویشتمه مي کاکا اسدالله خان پوپل هدیرې ته وروواست. ده ته دي خدای خیر ورکړي سمدستي ئې د اقراء ساختماني شرکت له څښتن سره خبري وکړې. ښاغلي عزیزالله خان کرزي هم د شرکت څښتن ته سپارښتنه وکړه چي دا کار په جدیت

# کندهار






علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
**ډاکټر عبدالرازق پالوال**
**څېړندوی شېرشاه رشاد**
**حیات الله رفیقي**
**عبدالکریم طالب**
**فضل محمد پنهان**
**مطیع الله روهیال**

کمپیوټر چاري
**عثمان عاصي**

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
تلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۴ش کال څلرمه ګڼه (تله - لړم)**
**پرله پسې ۷۱ یمه ګڼه**

**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلني ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

# فهرست

## شېرنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# د اسلافو درناوی

د خپلو مشرانو پوهانو، عالمانو او لویانو په ښو یادول او هغوی ته احترام لرل نه یوازې د ویښو ملتونو ځانګړنه ده، بلکې د سلف و خلف تر منځ د ارتباط ښه وسیله هم بلل کېدای سي. زموږ اسلافو ډېر داسي څه پرې ایښي دي، چي تر ننه پوري زموږ د ویاړ او فخر سبب ګرځېدلي دي. د هغوی لارښووني او فرمودې که په سم ډول عملي سي کېدای سي د دې رنځوري ټولني د ډېرو رنځونو د علاج سبب سي.

د دې تر څنګ د هغوی یادونه زموږ د علمي - کلتوري چارو په پرمختګ کي مهمه ونډه لري، زموږ ټول اوسني معنویات له پخوانیو سره مستقیم اړیکې لري، څوک چي له پخوانیو څخه د بېلېدو هڅه او کوښښ کوي، ځان د یوازې والي او انزوا کندې ته اچوي، چي نه یوازې په ټولنیز لحاظ خطرناکه خبره ده، بلکې په علمي و فرهنګي ساحه کي ئې هم تاوان محسوس دئ.

زموږ د سیمي د ځینو اسلافو بیانونه، کتابونه او مقبرې د ورکي او نابودۍ سره مخامخ دي، د دغو موضوعاتو په جدیت سره تعقیبول او سر په ګرځول په لوی سر کي دولتي مسئولیت دئ، خو تر څنګ ئې د دې ټولني فرد فرد هم مسئول بلل کېږي، چي په دغو ټولو ساحو کي خپل مسئولیت په پوره ډول ادا کړي. د دغه مسئولیت اداینې ښه بېلګه په دې وروستیو کي د افغانستان د لوی پوه او جید عالم فاضل کندهاري علامه حبیب الله کندهاري (مشهور په حبو اخوندزاده) د مقبرې جوړېدل دي. د دغې مقبرې د جوړولو په کار کي په سر سره د استاد محمدمعصوم هوتک هڅې او کوښښونه د پوره یادوني وړ دي. د دوی تر څنګ د ټولو هغو دوستانو کور ودانی په کار دئ، چي د دغه کار له پاره ئې مالي و تخنیکي امکانات برابر کړي دي. د ټولو ئې کور ودان.

د فاضل کندهاري پر قبر او مقبره سربېره د ډېرو نورو کندهاري علماوو او پوهانو مقبرې هم د ورکي سره مخامخ دي، د هغوی رغول او له ورکي څخه ساتل د دولتي امکاناتو تر څنګ د کندهار د خبیرو او علم پروره اوسېدونکو هڅې او تلاښونه غواړي، تر څو زموږ د اسلافو وروستي یادګارونه له ورکي وژغورل سي او د راتلونکو نسلونو له پاره د فخر او افتخار سبب وګرځي.

د اسلافو یاد دې روښانه وي

محمدشعیب وحدت

# د اروانښاد عطايي د تاريخ ليکني ځانګړتياوي

مرحوم عطايي د افغانستان د تاريخ ليکني د مخکښانو څخه وو. نوموړي په تاريخ ليکنه کي نوي علمي معيارونه په نظر کي نيول او دې کار هغه ته د نورو سترو افغاني تاريخ پوهانو په منځ کي خاص ځای ور په برخه کړی دئ. محمد ابراهيم عطايي د خپل اکاډميک ژوند په جريان کي په بېلا بېلو علمي ډګرونو لکه ادبيات او ژورناليزم کي د پام وړ تخليقي کارونه کړي دي خو تاريخ ليکنه ئې شايد د علمي ژوند تر ټولو لويه بريا وي. اروانښاد ته زموږ د نورو سترو تاريخپوهانو د تاريخ ليکني نيمګړتياوي مالومي وې نو ئې ځکه په خپل کتاب "د افغانستان معاصر تاريخ ته يوه لنډه کتنه" کي يو شمېر نوي اکاډميک اصول په نظر کي ونيول او دې کار ئې هغه د نورو لويو تاريخ ليکونکو سره د مقايسې وړ وګرځاوه.

البته بې انصافي به وي چي د مرحوم عطايي دغه کتاب، چي دی ئې خپله «لنډه کتنه» ګڼي، په تمامه مانا زموږ له نورو تاريخونو جلا او مخکښ اثر وبولو ځکه د تاريخ ليکني اسنادي او کتابتوني ميتود ئې له نورو سره مشترک دئ.

له نېکه مرغه ما درې کاله مخکي فرصت پيدا کړ چي د کندهار پوهنتون د پښتو ادبياتو يوه ټولګي کي د دغه کتاب څخه د ماخذ او تدريسي کتاب په توګه کار واخلم او د مرحوم عطايي د تاريخ ليکني ځانګړتياوي په دقت يادابنت کړم او له تاريخ پوهني ئې د خپل برداشت مطابق ګټه واخلم.

په دې نيمګړې مقاله کي مي د کانديد اکاډميسين عطايي د تاريخ ليکني مهمي ځانګړتياوي راټولي کړي دي. هيله ده لوستل ئې د وخت ضياع نه وي.

**لومړی: علمي تحليل:**

زموږ نورو لويو تاريخ ليکونکو تر ډېره ځايه تاريخي پېښي په داسي انداز ليکلي دي چي ته به وايې د دغي پېښي ترمخه هيڅ نه ول؛ هيڅ چا هيڅ نه کول، يوه خلا وه او په ناڅاپي ډول سره هر څه پېښ سول. زموږ دغو تاريخ ليکونکو پېښي په مجرد ډول مطرح کولې. دا ډول تاريخونه و لوستونکو ته داسي احساس ورکوي چي د تاريخ ستري څېرې د خپلو کارنامو له پاره هيڅ ذهني او ټولنيز عوامل نه لري بلکي يو دم د پېښو د رامنځته

کولو له پاره تصمیمونه نیسي او هر څه بدلوي. مرحوم عطایي و دغه دود او قاعدې ته تغییر ورکړ. نوموړي د پېښو او بدلونونو له پاره عوامل ولټول. تاریخ ئې د فکري او اقتصادي قواوو تر منځ د تعامل او د ټکرونو محصول وباله. عطایي ته تاریخ یوازي د پېښو ټولگه نه ده چي مؤرخ ئې ځان په لیکلو مکلف گڼي بلکي مؤرخ باید د دغو پېښو د رامنځته کېدو دلایل او عوامل هم راوښیي. مؤرخ باید وڅېړي چي پېښي او واقعات ولي کیږي؟ دولتونه ولي رامنځته کیږي او بیا چپه کیږي؟ ایا یوازي سیاست د خلگو سرنوشت بدلوي که د خلگو شعور، د شرایطو غوښتنه، اقتصادي حالتونه او نور عوامل هم رول لري؟ اما عطایي صاحب یو په تمامه مانا هگلي تاریخ لیکونکی نه دئ. دا بحث اوږد دئ... هغه دا نه منل چي تاریخي بدلونونه دي په یوه شپه یا یوه شېبه کي رامنځته سوي وي. عطایي تاریخي تحولات یو د بل سره په اړیکه کي تحلیلوي. مثلاً د میرویس نیکه د کارنامو او د کندهار د حالاتو اړیکی څېړي. د احمدشاه بابا د دولت جوړوني هڅو ته د میرویس نیکه د کلتوري نقشې عملي مرحله وایي او داسي نور.

**دوهم: نوی علمي تعریف:**

مرحوم عطایي د تاریخ د علم له پاره یو نوی، جامع او علمي تعریف لري. اروابناد عطایي تاریخ داسي راپېژني:

په پرون کي د مادي، شعوري او سلیقه‌یي تفاوتونو او اختلافاتو څخه د راپیدا سوو پېښو علمي تحلیل او بیان ته تاریخ ویل کیږي.

په دې تعریف دغه خبري د غور وړ دي:

**الف:** دا تعریف ډیالکټیکي منطق ته اشاره کوي. ډیالکټیک یو پېچلی او پراخ فلسفي– تاریخي بحث دئ. د تاریخ په فلسفه کي ئې مطلب دا دئ تاریخي پېښي یوه د بل سره تعامل کوي او یوه نوې پېښه ځني زېږي. په تاریخي بحثونو کي ډیالکټیک تر ډېره د یوه میتود په مفهوم کارول کیږي. د الماني فیلسوف، هیگل تاریخي فلسفې دې مفهوم ته ډېره پراختیا او علمیت ورکړی دئ. د هیگل ډیالکټیک د تیسس (مفهوم)، انټي‌تیسس (د مفهوم ضد) او سینتسیس (ترکیب) کي خلاصه* کیږي. په تاریخ کي پېښه د مفهوم، غبرگون یا متضاده پېښه د انټي‌تیسس او نوې پېښه د سینتسیس ځای نیسي. عطایي صاحب په خپله تاریخ لیکنه کي د دغه منطق منونکی دئ. هغه تر ډېره کوښښ کړی چي زموږ د ملي تاریخ پېښي د دغه منطق او میتود پر اساس تحلیل کړي. یوه پېښه له بلي سره وتړي او په نویو واقعو کي د زړو واقعو نقش مطالعه کړي. نوموړی په لوړ تعریف کي هم پېښي یو د بل په مقابل کي دروي او نوري نوي پېښي د هغو زېږنده گڼي. د تاریخ لیکني او په تاریخ د پوهېدني دغه ډول میتود ته ډیالکټیکي میتود وایي.

**ب:** دا تعریف د تاریخ له پاره یو نسبتاً پراخ او څو اړخیزه تعریف دئ. د تاریخ په باره کي زموږ افغانانو ذهنیت دا دئ چي تاریخ یاني د سیاسي پېښو بیان خو مرحوم عطایي د تاریخ کلي او لوی مفهوم را اخیستی دئ او په هغه کي فکرونو ته هم ځای ورکړی دئ.

تاريخي پېښې ئې د فکري او اقتصادي تفاوتونو او ټکرونو زېږنده بللي دي. زموږ نور تاريخونه د داسې پراخ ليدلوري څخه بې برخي دي.

ج: دا يو جامع تعريف دئ چې د ټولو لويو او کوچنيو تمدنونونه، بشري ډلو او لويو تاريخي بدلونونو استازيتوب کولای سي.

د: دا تعريف پر علمي تحليل تاکيد کوي. ښاغلی عطايي په خپل تعريف کې د تحليل يادونه کوي. دا په دقيقه سره د نوي تاريخپوهانو وظيفه ده چې د پېښو تحليل وکړي. تاريخ يوازې کيسې او افسانې بيانول نه دي او تاريخ ليکنه يوازې د پاچاهانو د دبدبو او ظلمونو کيسې نه دي. تاريخ علم دئ او وظيفه يې د پېښو علتونه څېړل او تحليلول دي. عطايي صاحب د تاريخ دا رسالت مني او خپل تاريخ د دغو معيارونو پر اساس ليکي. عطايي صاحب واقعات بيانوي خو د واقعاتو تر شا ببلابېل علتونه هم څېړي. د عطايي صاحب تاريخ په دغې مميزې ښايسته دئ. هغه زموږ د معاصر تاريخ هر فصل او هره مهمه پېښه د نورو پېښو سره په تړاو کې تحليل کړې ده، داخلي او خارجي علتونه ئې څېړلي دي او د دغو پېښو او لويو سياستونو تاثيرات ئې شمېرلي دي.

**دريم: تاريخي پېښې د بشري ټولنو تر منځ د تعامل، فکري ټکرونو او تضادونو د محصول ګڼل:**

ښه به وي که دا اړخ په دوو برخو، تعامل او جيوپوليتيکي تحليل، کې بيان کړم.

**الف: تعامل:**

تاسي ولوستل چې مرحوم عطايي تاريخ ته د تعاملي او تحرکي نظره ګوري. اروانباد عطايي نه يوازې دا چې زموږ د معاصر تاريخ ستر بدلونونه د سترو نړۍ والو قدرتونو د سياستونو سره تړي بلکې افغانستان ته هم د يوې فعالې قوې په توګه قايل دئ. دی که څه هم زموږ په سياستونو کې د سترو امپراتوريو رول برجسته ګڼي او د کتاب لوستلو پر مهال کله کله لوستونکی داسي حسوي چې زموږ د ډېرو ملي تصميمونو انګېزه له دباندې څخه راتله خو يو دقيق نظر موږ دې قضاوت ته رسوي چې اروانباد عطايي په سيمييزو سياسي معادلاتو کې و افغانستان ته د يوې فعالې قوې په توګه ګوري. په بل عبارت، اروانباد عطايي په خپلو تحليلونو کې و سترو نړۍ والو لوبو او پېښو ته په مراجعې کولو سره خپل هيواد ته د يوه فعال لوبغاړي او په سيمييزو سياسي معادلاتو کې هغه ته د يوه مهم عنصر په نظر ګوري.

مثلاً تر لومړي افغان- انګرېز جنګ (۱۸۴۱ ز) وروسته د دې پېښې او د انګرېز امپراتورۍ و سياستونو ته د افغانستان ننوتلو او د وخت پر اميرانو د دې پېښې تاثيرات بيانوي. مرحوم ښيي چې څه ډول دې پېښې زموږ ځيني سرټمبه واکمنان و معقول سياست او حسابلو تصميمونو ته اړ کړل تر څو بلاخره افغانستان د يوه اغېزمن او د انګرېز پر سياسي – مالي حمايه چلېدونکي دولت څخه په يوه فعال، تصميم نيوونکي او حتا خپلواک دولت واوښت.

دغه ډول د کتاب په اتم فصل کې د لويې لوبې يا گريټ گيم په باره کې خپل نظر وړاندې کوي. د لويې لوبې اصطلاح د هغه مهال د انگرېز او روسي طاقتونو و سياليو او خپلمنځي معاملو ته کارول کيږي. مرحوم عطايي هلته استدلال کوي چې د دې لوبې په نتيجه کې زموږ سرحدونو، واکمنيو او خارجي سياستونو تغيير کاوه او د وخت اميرانو د دغو لوبې د خطرونو او پايلو په نظر کې نيولو سره د خپلو داخلي او دباندنې چارو پرېکړې کولې.

د سيميزو سياسي معادلو او تعاملونو بحث به لاندې د جيوپوليټيکي تحليل په برخه کې ولولئ.

**ب: جيوپوليټيکي تحليل:**

دا چې نن – سبا په علمي ځانگو کې دغه ډول تحليل تر ډېره په جيوپوليټيک کې کارېږي. دا خبره په دې مانا نه ده چې ارواښاد عطايي خپل ټول تاريخ په جيوپوليټيکي ميتود ليکلی او تحليل کړی دئ. نوموړي د اړتيا پر ځای زموږ د مهمو تاريخي پېښنو جيوپوليټيکي تحليل وړاندې کړی دئ. جيوپوليټيکي تحليلونه و ملتونو ته د جغرافيايي او سياسي واحدونو په نظر گوري او کله چې ارواښاد د افغانستان سياسي حالات د سيمې او نړۍ له لويو سياستونو سره په تړاو کې څېړي نو تحليل ئې جيوپوليټيکي بڼه اخلي.

مرحوم عطايي، د بېلگې په توگه، د ناپليون نقشه چې افغانستان ئې پر هند د ورختلو تخته په نظر کې نيوله، زموږ له پاره سرنوشت ټاکونکې گڼي.

موږ په تاريخونو کې لولو چې د فرانسې انقلاب او د ناپليون نظامي پرمختگونو پر نورو دولتونو هم تاثيرات لرل. دا تاثيرات تر ډېره غيرمستقيم او له زماني لحاظه ليري بلل کېدل خو ارواښاد ئې د لويو سياستونو په توگه په نظر کې نيسي او دا پلانونه زموږ د معاصر تاريخ د ډېرو جريانونو او تحولونو مسير ټاکونکي گڼي.

د ښاغلي عطايي د تاريخ ليکنې يوه ډېره ځلېدونکې ځانگړتيا دا ده چې هغه تک عاملي فکر او تحليل نه کوي. د پېښنو په يوازينې علت باور نه لري او د هغو له پاره څو ډوله دلايل او بېلابېل اړخونه بيانوي. مرحوم ځان په يوه عامل او يوه علمي ځانگه نه محدودوي. دې کار د ده څخه يو ممتاز تاريخ ليکونکی جوړ کړی دئ؛ ممتاز او عالم تاريخ‌ليکونکی.

**څلرم: څو – عاملي تحليل:**

لوړ اشاره وسوه چې ارواښاد عطايي د پېښنو په يوه علت اکتفا نه کوي. زموږ نور تاريخونه د پېښنو له پاره يو ډول او اکثره وختونه سياسي علتونه بيانوي. هغه د پېښنو په تحليل کې بېلابېل علتونه او دلايل په نظر کې نيسي او څو – اړخيزه او نسبتاً پراخ تصوير وړاندې کوي. د ټولنو پېښې په خپله د ټولنو غوندې پېچلې او د مختلفو ذهني او مادي شرايطو په پايله کې رامنځته کيږي. د داسې ټولنو د واضح تصوير وړاندې کولو له پاره مؤرخ مکلف دئ. مرحوم عطايي په خپل دغه مکلفيت پوهيږي او د هرې مهمې موضوع د شاربلو له پاره بېلابېل سياسي، اقتصادي او فکري شرايط د پېښنو د عواملو په توگه

بيانوي. لوستونکی قانع کوي چې هيڅ تاريخي کرکټر په يوه شېبه کې تحول نه راولي بلکې څو ډوله شرايط سره يوځای کېږي او د پېښو ماهيت ټاکي.

**پنځم: د معاصر تاريخ د ظاهراً جلا پېښو ترمنځ اړيکې بيانول؛ د پېښو واحد او کُلي تصوير:**

دا د مرحوم عطايي د تاريخ ليکنې يوه برجسته مشخصه ده. هغه د سترو او د ظاهري لحاظه بېلو پېښو تر منځ اړيکې پيدا کوي؛ د واقعاتو نسبتاً غټ او کلي تصوير راښيي. نوموړی په دې کار ډېر بريالی دئ. زموږ نور تاريخي کتابونه د ډېرو داسې پېښو په بيان ډک دي چې د مخکنۍ پېښې سره ئې اړيکې پيدا کول ستونزمن وي. مرحوم عطايي دې نيمګړتيا ته پام دئ. هغه خپل تاريخ داسې ليکي چې لوستونکی د جزئي پېښې د لوستلو پر مهال د هغې او د کُلي يا لويې پېښې سره ارتباط نه ورک کوي. تاريخ هيڅکله د واقعو او بدلونونو يو ولاړ او وچ بيان نه دئ. هيڅ تاريخي پېښه په خلا کې نه رامنځته کيږي بلکې بېلابېل ټولنيز، اقتصادي او شعوري علتونه لري. د مؤرخ نامیتوب دا وي چې دا علتونه بيان او د دوی په نظر کې نيولو سره څو-اړخيز تحليل وړاندې کړي. مرحوم عطايي د يوه نوي تاريخ ليکونکي او تاريخ پوه په توګه دغه قاعدې په نظر کې نيسي.

– د پېښو په رامنځته کېدو کې د داخلي عواملو ترڅنګ پر خارجي عواملو بحث. مثلاً د کتاب په پنځم فصل کې د افغانستان د تجريد خبره.

د دې خبرې ښه مثال د ده په کتاب کې د افغانستان د بنسټ اېښوونې د مهال بحث دئ. مرحوم عطايي د کتاب په لومړي فصل کې په ډېره ښه توګه د سياسي جوړښت په توګه د يوه نوي دولت د رامنځته کېدو اړتيا تشريح کوي. اروانښاد هلته د کندهار سياسي او ټولنيز حالات د نوي دولت د جوړېدو ايجابوونکي بولي.

د ميرويس خان نيکه دوره د احمدشاه بابا د دورې سره نښلوي، ميرويس نيکه د هغه مهال د افغانستان د کلتوري نقشې طراح او احمدشاه بابا د هغې نقشې او پلان عملي کوونکی ګڼي.

**شپږم: عينيت يا بې‌طرفي پالنه:**

اروانښاد عطايي د واقعو د بيان او تحليل پر وخت د موضوعاتو عينيت، رښتياوالی او مهموالی په نظر کې نيسي. هغه په خپلو تحليلونو کې د خپلو شخصي قضاوتونو د داخلولو هڅه نه ده کړې. تاريخ‌ليکنه په خپل ذات کې قضاوت دئ اما دا قضاوت بايد پر واقعيت، بېطرفۍ، په سترګو ليدل سويو ثبوتونو ولاړ وي. د مرحوم تاريخ له نېکه مرغه يوه عيني او له تعصبونو څخه پاک تاريخ دئ.

**اووم: اولسي روايتونه:**

کله چې د تاريخ ليکنې شرايط سخت وي او مؤرخ د پېښو اړوند موثقو او کره مالوماتو ته لاسرسی و نه لري نو بيا د پېښو د لړ تر لړه ثبتولو له پاره اولسي روايات اړين او د يوازينۍ منبع په توګه پاتيږي. دا روايات که څه هم دقيق اما اعتبار لري. دا يادونه مې څکه وکړه چې د اروانښاد دا کار و خپل مسلک ته د

وفاداري په مانا دئ. هغه د خپل ژوند تر پایه پېښې د خپلو جزئیاتو سره ولیکلې او د منابعو د کاختې په وخت کې یې د تر ټولو لږ اعتبار لرونکو معلوماتو ثبتولو څخه هم مخ نه اړاوه. دا خبره هم رښتیا ده چې د نوموړي دا کار د ده د کتاب د مجاهدینو د دورې اړوند فصل کې راغلي ځیني مالومات تر پوښتنې لاندې راولي خو نوموړی په خپله دا مني چې د مالوماتو د خلا له امله د ځینو پېښو له پاره د خلګو پر شفاهي کیسو او روایتونو تکیه کوي.

**اتم: ټولنپوهنیز تحلیل:**

مرحوم عطایي د یوه عصري او ځیرک ټولنیز عالم په توګه د ټولنیزي علومو پر یوې بلې مخکښې څانګې، ټولنپوهنې باندې هم برلاسی دئ. هغه د پېښو د عواملو د لټون پر مهال هغه ټولنیزي ناخوالې هم یادوي چې د ملتونو د راتلونکو جمعي حرکتونو وړاندلیدنه ځنې کېدای سي او د بې ثباتو حکومتونو سرنوشتونه ټاکي.

په څو برخو کې ئې په لنډه توګه بیانوم.

**الف:** مرحوم عطایي په سیاسي خوځښتونو کې د ټولنیزو عاملونو لکه لوږې، بې‌سوادي، قومي اړیکې، سیاسي بې‌سرنوشتي، د حاکمیت خلا او نورو نقش په رسمیت پېژاند.

**ب:** اروابناد عطایي د ټولني پر دوديز جوړښت هم خبري کړي. مثلاً، جرګه ئې د یوه اړین بنسټ په توګه د دولت‌جوړوني له پاره مشروعیت‌ورکوونکې قوه ګڼل. د خپل کتاب په لومړي فصل کې بیانوي چې څنګه احمدشاه بابا جرګه د خپلي شاهي اداري تر څنګ د تصمیم‌نیوني د یوه باصلاحیته بنسټ په توګه کاروله.

**نهم: د نویو کرکټرونو معرفي:**

د مرحوم عطایي د هغه څو – اړخیز تحلیل د قاعدې پر اساس په خپلو منابعو کې په نویو لوبغاړو او شخصیتونو پسي ګرځېدلی دئ. دا خبره تر ډېره د انګرېز چارواکو په برخه کې صادقه ده. هغه نوي انګرېز چارواکي معرفي کړي دي او د سرنوشتونو او تصمیمونو په بدلون کې ئې د هغوی نقشونه واضح کړي دي. د بېلګې په ډول، لارډ مارنګټن چې د بنګال حکمران وو او جان مالکم.

**لسم: تاریخ لیکني ته وفاداري:**

اروابناد عطایي د طالبانو وخت ټولي مهمې پېښې او پرمختګونه ثبت کړي او په ډېر احتیاط ئې د خپل کتاب په اخیري فصل کې راوړي دي. هغه مني چې د دغو پېښو د لیکني پر مهال ځیني قیودات او د دغي دورې نه‌تکمیل دا مجال نه پرېږدي چې دې کار ته دې تاریخ‌لیکنه وویل سي خو د دغو مشخصو دلایلو پر اساس دا کار کوي:

**الف:** د طالبانو د دورې پر مهال تاریخ لیکنه یو ستونزمن کار وو. ډېرو لږو کسانو و مالوماتو او سرچینو ته لاسرسی درلود. د نوموړی په وینا، دی یو د دغو کسانو څخه وو او وایي، که ما دا پېښې نه وای راوړي او ثبت کړي نو شاید دا مالومات ضایع سوي وای.

**ب:** د کرونولوژیک نظم په خاطر.

خو مرحوم یادونه کوي چې دا کار ئې علمي نه دئ او ځکه خو د دغي دورې او پېښو په باره کې پاته په (۲۱) مخ کې



ليکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/ کاناډا



# علامه حبيب الله کندهاری

## (حبو اخندزاده)



د ملا فيض الله زوی علامه حبيب الله په معقولو او منقولو علومو کي د تبحر درجې ته رسېدلی وو. د علم و فضيلت انګازې ئې تر هيواد دباندي ملکونو (اېران، هند او حجاز) ته رسېدلي وې او په بهر کي ئې د پوهانو له خوا د (محقق کندهاري)، (فاضل کندهاري) لقبونه ګټلي ول. د خپل هيواد په علمي حلقو کي په (حبو اخندزاده) باندي مشهور وو. سردار غلام محمد خان طرزي د علامه حبيب الله علمي مقام داسي ستايلی دئ:

آنکه چون وی عالمی کم دید چشم روزگار
گر چه گردیده بسی اندر بيابان طلب
مظهر تقوی و دانش منبع علم و عمل
معدن فضل و هنر کان علوم مکتسب

"د سراج الاخبار د پنځم کال د دوهمي ګڼې په هغه ليکنه کي چې د حبو اخندزاده د لمسي مولوي عبدالروف خاکي د وفات په باب کښل سوې ده، د حبو اخندزاده له نامه سره د (جناب عالم فاضل وحيد الدهر و فريد العصر استادالکل فی الکل مولوی حبيب الله صاحب قندهاری) القاب ليکل سوي دي".

نوموړی د ۱۲۱۳هـق کال د کندهار ښار د باميزو په کوڅه کي وزېږېد. لومړنۍ زده کړي ئې د خپل فاضل پلار تر لارښووني لاندي د کورنۍ له غړو څخه وکړې. په ځواني کي ئې د خپل عصر مروج علوم (صرف، نحو، بلاغت، تفسير، حديث، فقه، اخلاقيات) ولوستل، پر دې سربېره ئې په رياضي او نجوم کي هم

ژوري مطالعې وکړې. د علامه حبیب الله کندهاري په استادانو کې د دوو تنو نومونه یاد سوي دي، یو د احمدشاهي کندهار قاضی القضات ملا احمد الکوزی[1] او بل ملا فرح الدین اخند. ملا فرح الدین اخند ئې پر استادۍ سربېره روحاني مرشد هم وو.

د علامه حبیب الله د ژوند زمانه پر کندهار باندي د کندهاري ورونو (کهندل خان ...) د واکمنۍ له وخت سره برابره ده. په کندهاري ورونو کې د سردار کهندل خان له مستبدي واکمنۍ څخه سر ټکول سوی دئ[2]، خو د ده دوه ورونه سردار رحمدل خان او سردار مهردل خان مشرقي علم دوست او فرهنګپال شخصیتونه ول. سردار پردل خان د پښتو او فارسي ژبي شاعر وو او په طریقت کې د حضرت جي بابا رحمه الله مرید وو[3]. سردار پردل خان له مولوي حبیب الله سره ډېر ښه اړیکی درلود او په درنه سترګه ئې ورته کتل. په یوه لیک کې ئې چې د ۱۲۶۴ق کال نېټه لري، د [فضیلت پناه] په لقب یاد کړی دئ[4].

سردار مهردل خان مشرقي چې د پښتو او فارسي ژبو شاعر، لیکوال او فرهنګپال سړی وو او په کندهار کې د ده کور د یوه ادبي انجمن شکل درلود، علامه حبیب الله کندهاري ته ډېر ارادت درلود او درناوی ئې کاوه. د خپلي کورنۍ د غړو د استاد په توګه ئې ترې علمي استفاده کوله. علامه حبیب الله د نوموړي سردار په غوښتنه د حدیثو په باب یو کتاب کښلی دئ چې نقد الثقات ... نومېږي.

لکه وراندي چې وویل سوه علامه حبیب الله کندهاري د منقولو او معقولو علومو متبحر استاد وو. زموږ په ګران هیواد تاریخي افغانستان کې تر چنګېزي تاړاک وړاندي د ساسانیانو، غزنویانو او غوریانو په دورو کې د هرات، بلخ، بست، زرنج، غزني و بامیان د علمي مدرسو په تدریسي نصاب کې د معقولو

---

[1] ملا احمد الکوزی د کندهاري ملا اسماعیل ابدالي زوی د احمدشاهي عصر لوی عالم او مشهور قاضي وو. د کندهار په ښار کې اوسېدی. پر محضر ئې فاضلان او عالمان راغونډ ول. په تالیفاتو کې ئې د تعلیم السلوک، کاشفه، رسالهٔ فارقه، بیان وافیه الطوایف الصوفیه او نور یادولای سو. "د حاجي عبدالمجید هوتک په کتبخانه کې د ملا احمد دغه خطي آثار خوندي ول:

– حاشیه علی شرح فیروز. د دغه اثر دوې نسخې وې. یوه ئې د پای له خوا ناقصه وه.
– وقیه لطوایف الصوفیه.
– تعلیم السلوک. دغه اثر د ملا احمد په خپل خط وو".

[2] وګورئ: د حاجي جمعه بارکزي دېوان: ۱۷۴ مخ، ۱۳۶۰ کابل.

[3] علامه محمود طرزي د خپل دانشمند پلار سردار غلام محمد طرزي د دېوان په سریزه کې لیکلي چې ما له خپل محترم پلار څخه په علم و کمال کې د ده د دومره بریالیتوب وجه وپوښتل او نوموړي په جواب کې د خپلي مور له خولې راته وویل، چې دا د هغې دوعا برکت دئ چې (عم کبیر) سردار پردل خان مرحوم چې په ظاهر و باطن کې د معرفت څښتن او د قطب زمان میان حضرت جي صاحب یو باکمال مرید وو. د ده په حق کې کړې وه، (وګورئ: دېوان جناب طرزي صاحب: ص ۱٦، چاپ ۱۳۰۹). له دې څخه د سردار پردل خان د علمي و عرفاني شخصیت اټکل کېدلای سي. سردار غلام محمد طرزی د رحمدل خان زوی او د پردل خان وراره وو.

[4] دا لیک زما سره خوندي دئ. فوتوکاپي مې یو وخت علامه استاد رشاد مرحوم ته هم ورکړې وه.

علومو لکه رياضي، نجوم، هيات، فلسفه او منطق تدريس شامل وو. خو تر چنگيزي تاړاک وروسته دا ټول ښکلي ښارونه او علمي مدرسې له خاورو سره برابري سوې. تر دې وروسته که زموږ په وياړلې خاوره کې د پوهې او معرفت ډېوې روښانه سوي دي، نو علماوو او دانشمندانو يوازې د منقولو علومو لکه تفسير، حديث او فقه زده کړې او تدريس ته زياته پاملرنه کړې ده. د معقولو علومو هغه څراغ چې د علامه البيروني او ابن سينا بلخي له خوا پر دې تاريخي خاوره روښانه سوی وو، نوره رڼا نه درلوده. له بلې خوا په شپاړسمه او اووه لسمه عيسوي پېړۍ کې د هرات د تېموريانو تر سقوط وروسته زموږ د سيمې خلک د هند د مغولي او د پارس د صفوي دولت پر ضد د خپلواکۍ ګټني په مبارزو بوخت دي. د دې مبارزو لومړی ارمغان په کندهار کې د ملي قايد حاجي ميرويس خان په مشرۍ د پرديو له تسلط څخه يو خپلواک او ملي دولت جوړېدل وو. د لوی احمدشاه بابا په مبارک لاس چې د واحد او يو موټي افغانستان تاداو کېښېښوول سو، نو د علم او پوهې د مشال د بيا لګېدو له پاره مجال پيدا سو، خو علماوو مو په تدريسي نصاب کې کوم د يادوني وړ انکشاف را نه ووست او د پخوا په شان د منقولو علومو د زده کړې پر محور ئې خپلې علمي هڅې متمرکزې کړې وې. په دغه وخت کې يوازنی شخص چې د هغه وخت د محيطي قيودو له چوکاټه ئې خان راويوست، علامه حبيب الله کندهاری وو چې د معقولو علومو په رواجولو سره ئې د علامه ابو ريحان البيروني او ابن سينا بلخي د وخت علمي هنګامه بيا له سره توده کړه او لکه د دې بحث په سر کې چې مو وويل د همدې عالي هدف د تر لاسه کولو په نيامت ئې هند او ايران و حجاز ته سفرونه وکړل او ډک لاس ترې راستون سو. علامه فاضل کندهاري په رياضي، هندسه او منطق کې داسې شاهکارونه وليکل چې لوی استاد علامه حبيبي مرحوم ئې د اروپا د شپاړسمې پېړۍ د علماوو فرانسس بيکن او رنه ديکارت[5] له علمي اکتشافاتو سره ورته ګڼي. علامه فاضل کندهاري خپلو شاګردانو ته توصيه کوله چې: "هغه علم ته په بده ستر ګه مه ګورئ چې په ژوند کې ترې چاره نسته. طب، حساب، نجوم او هندسه زده کړئ ځکه چې د ژوند تاداو پر همدې علومو ولاړ دئ"[6].

علامه حبيب الله په عربي، فارسي او پښتو کې زيات کتابونه تاليف کړي دي چې شمېر ئې تر دېرشو اوړي. په همدغو دريو ژبو ئې شعر وايه. زما د معلوماتو له مخې د کندهار په شخصي کتابخانو کې داسې يوه نه وه چې علامه حبو اخونزاده تاليفات دې ئې خوندي کړي نه وي. د کندهاري سليمي په خطي کلکسيون، د مرحوم دوست محمد برېښ په خطي مجموعه، د حاجي عبدالمجيد هوتک په خطي کتابو، د مرحوم غريبک په خطي ګنجينه کې د فاضل استاد علامه پوهاند رشاد مرحوم په خطي زېرمه او زما د کتابو په خطي

[5] فرانسيس بيکن (۱۵٦۱ - ۱٦۲٦ع) دانګلستان مشهور فيلسوف او رنه ديکارت (۱۵۹٦ - ۱٦۵۰ع) د فرانسې معروف ساينس پوه او فيلسوف وو.
[6] آريانا مجله: د ۱۳۴۵ کال د حوت ګڼه.

کلکسیون کي د حبو اخونزاده آثار سته. دغه راز د حیدرآباد دکن، پېښور او د افغانستان په ملي آرشیف کي هم.

د ده د آثارو د شمېر او نومونو په باب راز راز روایتونه سته. د تالیفاتو نومونه ئې سره اوښتي دي او د چاپي تېروتنو له امله د کتابو په نومو کي بدلونونه راغلي دي. په دې برخه کي زما د همدې څېړني په ګډون د زیاترو لیکنو ماخذ د اروابناد علامه حبیبي هغه تفصیلي بیان دئ چي د ۱۳۴۵ش کال د (آریانا) په مجله کي خپور سوی دئ. زما سره همدا ګړی د آریانا هماغه مجله نسته خو د علامه مرحوم د همدغي لیکني یو نقل راسره سته، چي د ښاغلي محمدوزیر کرخي هروي په ښکلي نستعلیق خط لیکل سوی دئ[۷]. په دغه لیکنه کي د علامه حبیب الله کندهاري مشهور

---

[۷] ښاغلي محمدوزیر هروي د (یادی از دانشمند مورخ نامور افغانستان مرحوم پوهاند عبدالحی حبیبی قندهاری) تر نامه لاندي په ۹۷ مخونو کي د مقالو یوه نفیسه مجموعه په خپل خط د کاناډا د انتاریو ایالت د لندن په ښار کي د ۲۰۰۱م کال په مارچ کي خپره کړې ده. په دې نسخه کي د اروابناد سید قاسم رشتیا، ښاغلي عبدالرشید بینش او جناب ډاکټر عنایت الله شهراني مقالې چي ټولي د علامه حبیبي مرحوم په یاد لیکل سوي دي خوندي دي. د دغي نسخې یوه کاپي ما ته زما ډېر محترم دوست ښاغلي الحاج محمدآصف پاس یوسفي صاحب د لوستلو له پاره راکړه چي ممنون ئې یم. زما په همدې لیکنه کي که درانه لوستونکي د علامه حبیبي مرحوم پر بې حوالې نقل قولونو پېښ سي، باید پوه وي چي دا نقل قولونه له هغي مقالې رانقل سوي دي، چي د ۱۳۴۵کال په حوت کي د کابل د تاریخ انجمن د (آریانا) مجلې په یوه ګڼه کي خپره سوې ده.

په (فاضل کندهاري) آثار داسي معرفي سوي دي:

۱. شوارق (په عربي ژبه): په علم حدیث کي.
۲. رساله تفکر (په فارسي ژبه): موضوع ئې اخلاق و عرفان دئ.
۳. رساله نماز و اسرار آن (په فارسي ژبه): په دې کتاب کي د لمانځه د اسرارو په باب د منقولو او معقولو علومو له مخي بحث سوی دئ.
۴. موعظې او خطبې (فارسي او عربي)
۵. رساله صبر و شکر (فارسي): په اخلاق کي.
۶. رساله محبت الهی (فارسي): په تصوف و اخلاق کي.
۷. رساله تمیز مومن و کافر (فارسي): وايي چي دا د ځینو تنګ نظرو متفکرانو په باب یوه دیني او کلامي څېړنه ده.
۸. تواریخ وفیات مشاهیر اسلامی در قرون ثلاثه (فارسي).
۹. شمه بارقه (فارسي): د وحدت الوجود او وحدت الشهود په باب. دا کتاب شپږ فصله لري او څېړنه ئې د قدر وړ بلله سوې ده.
۱۰. چهل مساله دینی (فارسي): د ملا محمداعظم اندړ د سوالونو په جواب کي. د ملي ارشیف په خطي نسخو کي د (جواب فاضل) په نامه یوه رساله سته، چي د ملا حبیب الله قندهاري په قلم د محمداعظم

غزنوي په جواب کي کښل سوې ده چي غالباً به همدا رساله وي. د مرحوم حاجي عبدالمجید هوتک د خطي کلکسیون په فهرست کي د دغي رسالې نوم "المشکله اجوبه السوالات" دئ.

۱۱. احکام المله فی احکام اهل القبله (عربي): د امام غزالي رحمه الله پر (محصل فیصل التفرقه) باندي ئوي څېړني او زیاتوني دي.

۱۲. مغتنم الحصول فی علم الاصول (عربي): ډېر مهم اثر دئ او په هغه کي اصول فقه ته انتقادي کتنه سوې ده. علامه حبیبي مرحوم وایي: "... دا کتاب په صایب اجتهادي نظر تالیف سوی چي د بشپړېدو کال ئې ۱۲۵۷ق دئ. یوه سریزه او په مبادي او اصول اربعه کي درې مقالې لري ... د هند علماوو د خپلو عالي مدرسو په درسي نصاب کي د علامه محب الله بهاري د (مسلم الثبوت) پر ځای منلی دئ" او زیاتوي: "ما د پېښور د رفیع الاسلام په کتب خانه کي له مولانا سید صمداني سره د مولانا سید انورشاه کشمیري په قلم یوه شرحه ولیدله چي د مغتنم د خطي نسخو د پیدا کولو او د هغه د تدریس توصیه پکښې سوې وه". پر مغتنم باندي د هرات ملا محمدعمر سلجوقي (۱۳۳۱ق وفات) د (الملهم بر مغتنم) په نامه یوه شرحه کښلې ده[۸].

۱۳. انموذج العلوم[۹]: په دې کتاب کي د محقق دواني، میرزا حبیب الله شېرازي او خواجه افضل ترکي درې ګوني نماذج راغونډ سوي او د متقدمینو پر افکارو ئې خپلې څېړني او مطالعات ور زیات کړي دي.

۱۴. رساله مغالطات: دا رساله په منطق کي د ځینو مشهورو او غیر مشهورو مغالطاتو کره کتنه ده او د هغو جوابونه ئې ویلي دي. علامه حبیبي لیکي چي: "د متقدمینو او متاخرینو نظریات ئې په آزاده توګه تحلیل کړي دي، ځیني ئې سره سمي کړي او ځیني ئې په ټینګه جرحه کړي او انتقاد کړي دي".

۱۵. ابانه المله فی التوقف عن تکفیر اهل القبله (عربي): څلور فصله لري. موضوع ئې فقه، عقاید او کلام دئ. وایي چي د دې کتاب له مطالعې څخه د مؤلف پراخ نظر او کامل تبحر څرګندېږي. دا اثر ئې په فارسي هم لیکلی دئ.

---

[۸] په مزارات هرات ۱۸۹ مخ کي دا اثر (ملهم الاصول) بلل سوی دئ. د ملا محمدعمر سلجوقي نور آثار شرح فارسي کافیه، حاشیه بر ایساغوجي، رد الروافض، حاشیه بر غلام یحیی بهاري او نور دي.

[۹] انموذج په عربي کي د (نمونې او بېلګې) په معنا راځي او په پارسي کي ئې معنا (لږ = اندک) ده (غیاث). جمع ئې نماذج ده. انموذج العلوم د علومو لنډیز باید ترجمه سي.

١٦. مرآت الحق (عربي): اووه فصله لري او په ١٢٦٢ق کې تالیف کړی دئ.

١٧. وحدت وجود او شهود (پارسي): د ملا محمداعظم اندړ د پوښتنو په جواب کې. وایي د دې کتاب له لوستلو څخه څوک په تصوف او اشراق کي د مؤلف تبحر خورا ښه لیدلای سي[١٠].

١٨. مستحق القبول و القبله فی تحقیق سمت القبله (پارسي): د قبلې د ښوولو په برخه کي د فقه او ریاضي دلایلو پر اساس معلومات دي، چي په پنځو فصلونو کي راغونډ سوي دي. مؤلف غوښتي دي چي په دیني دلایلو ثابته کړي چي د قبلې د معلومولو له پاره باید له هندسي اصولو څخه کار واخیستل سي. علامه حبیبي مرحوم د دغه کتاب خطي نسخه کتلې وه او دغه استنتاجي روایت ئې څني رانقل کړی دئ: "هندسه شرعي علم نه دئ یعني له شرع سره کار نه لري او دا خبره په دې معنی باید و نه ګڼل سي چي د اړتیا په ځای کي له هندسي قانون سره سم عمل کول دي منعه وي. طب، حساب او نجوم هم شرعي علم نه دئ خو د اړتیا په وخت کي په هر یوه عمل کول ضروري دي. د اسلام په لومړیو وختو کي په هندسه باندي څکه عمل نه کېده، چي په هغه وخت کي دغه علم نه وو. خو د مامون عباسي له وخته بیا تر ننه پوري دغه علم په اهل اسلام کي پوره رواج موندلی او زیاترو محققینو پوهانو او مدققینو فاضلانو د هغه په هر فن کي له اقلیدس څخه نیولې بیا د مجسطي تر فن پوري ګټور تصنیفونه کړي دي... په هغو ښارو کي چي معتبره مهندسین زیات وي باید د هغو په قول ضرور عمل وسي".

١٩. رساله موسیقي (پارسي): د علومو په پخواني تصنیف کي د موسیقي علم د ریاضي یوه څانګه ده. وایي چي "د فیثاغورث د فلسفې له مخي د نغمو په تولید کي د ږغونو ترکیب د عددي تناسبونو تابع دئ". علامه فاضل کندهاري په رسالهٔ موسیقي کي د دغه علم اصول له ریاضي فورمولونو سره سم بیان کړي او له شرعي نقطهٔ نظره ئې د دغه علم پر رواتوب و نارواتوب (جاز و لا یجوز) بحث کړی

---

[١٠] اشراق په لغت کي ځلېدلو ته وایي. تر لمر ختو وروسته وخت ته هم اشراق ویل کېږي. اشراقیین هغو حکماوو ته ویل کېدل چي د زیات ریاضت له امله ئې په خپل باطن کي روښنایي او اشراق موندلی وو. افلاتون و بقراط د اشراقیینو له ډلي ګڼل سوي دي (غیاث). "د حاجي عبدالمجید هوتک په خطي مجموعه کي د (المشکله اجوبه السوالات) په نامه د علامه حبو اخندزاده یو اثر خوندي وو. حاجي صاحب مرحوم په خپل فهرست کي ورته کښلي ول: (در جواب میان محمداعظم رحمة الله علیه) که دا اثر له ١٧ نمبر کتاب څخه بېل وي، نو د علامه حبو پر آثارو باندي یو بل اثر زیاتېږي".

دئ. د دې رسالې اهمیت په اوس وخت کې خورا زیات دئ. کاشکې ئې مطالعه موږ ته میسره وای.

۲۰. تنقیح التهافت الفلاسفه (عربي): علامه حبیبي مرحوم لیکي چې په دې کتاب کې ئې د امام غزالي رحمه‌الله (متوفي ۵۰۵ق) او ابن ارشد اندلسي او خواجه زادهٔ رومي (متوفي ۸۹۳ق) په فلسفي مناظرو کې د انصاف په رعایت او آزاد فکر سره حکمیت کړی او په ځینو برخو کې ئې خپل نظر د دلیل و برهان په راوړلو سره بیان کړی دئ.

۲۱. پر الغ بېگي زیج باندې نوې څېړنه او حاشیه (پارسي): الغ بېگي زیج د هیات یو ډېر مشهور کتاب دئ. علامه فاضل کندهاري پر هغه باندې ګټوري حاشیې کښلې او هغه خاص مسایل ئې ورباندې زیات کړي دي چې ده خپله کشف کړي ول[۱۱]. د ښاغلي ډاکټر عنایت الله شهراني په قول دغه اثر له ترکي ژبې څخه ترجمه سوی دئ[۱۲]. یوه نسخه ئې په کابل موزیم کې سته.

۲۲. شرح نمط تاسع اشارات ابن سینا (عربي)

۲۳. بسط البسایط (عربي): د منطقو پر ځینو مباحثو باندې شرحه.

۲۴. منتخب تحریر اقلیدس (عربي)[۱۳]

۲۵. د تحریر اقلیدس پارسي ترجمه

۲۶. د اکر ثاوذوسیوس ترجمه

۲۷. مختصر کشف القناع عن احکام شکل القطاع: دا اثر د خواجه نصیر طوسي د یوه تالیف لنډیز دئ.

۲۸. ریاضي المهندسین: دا کتاب د علامه فاضل کندهاري یو علمي شاهکار دئ، چې په عربي او پارسي دواړو ژبو په همدې نامه لیکل سوی دئ. د مخونو شمېر ئې پر غټ کاغذ باندې یو زر و پنځو سوو ته رسېږي او "د هغه وخت د ریاضي علومو انسایکلوپیدي" بلل سوی دئ. د دې کتاب دوې نسخې د علامه حبیبي مرحوم له خولې موږ ته ښوول سوي دي چې وایي یوه ئې "د ۱۳۰۰ق په شاوخوا کې له کندهاره هند ته وړل سوې او معلومه نه ده چې اوس چیري ده؟" بله نسخه ئې چې ځیني برخي ئې نیمګړې وې او علامه مرحوم استفاده ترې کړې ده، د "کابل د ادبیاتو په پوهنځي کي"

---

[۱۱] زیج د (زیګ) معرب او د نجوم او هیات په اصولو او احکامو کي هغه علم دئ، چې له هغه څخه تقویم استخراجېږي (غیاث).

[۱۲] جریده لمر: شماره ۱۹، سال دوم، ثور – ۱۳۸۰ می ۲۰۰۱ چاپ ټورنټو، کاناډا.

[۱۳] اقلیدس (د لومړي په پېښ او د لام و دال په زېر) د نوقطرس زوی او د برینقس لمسی مشهور او متبحر فیلسوف، ریاضي پوه او منجم دئ چې په همدې نامه ئې په هندسه کي یو کتاب هم تالیف کړی دئ... اقلیدس په ۳۲۳ق م کي زېږېدلی او په ۲۸۳ ق م کي مړ سوی دئ. اقلیدس په اسکندریه کي اوسېدی (لغتنامهٔ دهخدا).

خوندي وه[۱۴]، چې د همدې نسخې له مخې ئې په خپله ليکنه کي موږ ته معرفي کړې ده. وايي چي علامه فاضل کندهاري خپل دغه اثر (رياضي المهندسين) د عمر په پای کي کښلی دئ. دا اثر شپږ روضې لري او هره روضه ئې د رياضي بېلابېل مبحثونه څېړي. لومړۍ روضه ئې د اقليدس د صوري هندسې د اصولو ترجمه، د (اکروثاو ذوسيوس) او (اکرمانالاوس) د کتابونو ژباړې دي، دوهمه روضه ئې د حساب د علم قواعد بيانوي، دريمه ئې د حساب او هندسې د علم توابع څېړي، څلرمه روضه د (علم الابصار) په باب بيانونه لري، پنځمه بيا د علم هيات په باره کي رڼغېړي او شپږمه د زيج او تقويم مسايل په بر کي نيسي. علامه حبيبي مرحوم ليکي چي: "د محقق قندهاري په ټولو هغو کتابو کي چي په رياضي علومو کي ئې کښلي دي، دا ټکی په څرگنده توگه ليدل کېږي، چي ده هغه قيود او حدود چي علماء له کلونو کلونو راهيسي پکښې محصور ول، مات کړي او د رياضي مسئلو په کشف او تحقيق کي ئې له اجتهادي نظره کار کړی دئ او نوي علمي کشفيات ئې کړي دي". علامه حبيبي مرحوم د هندسې او رياضي علومو د څېړنو په برخه کي د فرانسوي عالم دکارت او علامه فاضل کندهاري د څېړنو تر منځ مشابهتونه موندلي دي او ليکي چي که د محقق کندهاري دغه آثار چي "د خطي نسخو په شکل هم زموږ په هيواد او هم د پښتونخوا و هند و پاکستان په موزيمونو او کتب خانو کي ليدل سوي دي، راغونډ سي او د رياضي پوهانو له خوا وڅېړل سي، ښايي د علامه استاد فاضل کندهاري د مهارت اندازه ښه ترا څرگنده روښانه سي".

۲۹. شرح مقامات حريري (پارسي)

۳۰. نقد الثقات فی التزييف الموضوعات: دا کتاب ئې د احاديثو په تخريج کي د سردار مهردل خان مشرقي په غوښتنه کښلی دئ.

۳۱. رسالهٔ غرور: دا رساله د (اقسام و محاری و آفات غرور) په نامه هم بلل سوې ده. يوه نسخه ئې ما (هوتک) د کندهاري سليمي په خطي کتابو کي ليدلې وه چي د کندهار د زړې جامع د ملا عبدالاحد کاکړ غريبک په قلم يادابښتونه پر ليکل سوي او د نوموړي ملا صاحب دوه مهره ورباندي لگېدلي وه. دا نسخه د ارواښاد علامه حبيبي تر نظر هم تېره سوې او د کتاب پر لومړي مخ ئې په خپل خط

---

[۱۴] ما (هوتک) ته څرگنده نه ده چي دا نسخه د پوهنتون د کتابونو له وروستي تاراج څخه خوندي پاته سوې ده که څرنگه؟

او لاسلیک دغه یاداښت کېنلی وو:

"رسالهٔ غرور یکی از تالیفات محقق قندهاری علامه حبیب الله مشهور به حبو اخندزاده است، که عین همین رساله در مجموعهٔ رسایل بخط خود وی موجود است نزد عبدالحی حبیبی در کابل. گمان میرود که این رساله را از همان اصل نقل گرفته باشند و بعد از نوشتن مکرراً با اصل مقابله شده، بر حواشی دو سه جای خط مولوی عبدالرؤف قندهاری نواسهٔ مولف موجود است در معنی اکباب و غمار، و معلوم است این نسخه بملاحظهٔ آن مرحوم هم رسیده است.

عبدالحی حبیبی

کابل، جمال مېنه

۹ جوزا ۱۳۴۲"

۳۲. منهاج العابدین (پښتو): په اخلاق و عرفان کې ۷۰۰۰ بیته د امام غزالي د منهاج العابدین ترجمه. د پښتو منهاج العابدین اهمیت د ملا عبدالباقي افغان له دې بیتو څخه ښه ښکاري:

دوه کتابه په پښتو کې چې اخلاق د مبارک شو
سر تر پایه جواهر دي د حضرت له خویه ډک شو
باغ پټي دي ګل پر ورکړه یو "منهاج العابدین"
سره و سپین دي پر نثار کړه بل "اسرار العارفین"[15]

حیراني و دې سړي ته چې پښتون هم امتي وي
زړه و خونه و لاسونې له دې دوو ګنجو خالي وي[16]

۳۳. لسان المیزان فی تقویم الاذهان (عربي): دا کتاب د منطق په څېړنه او انتقاد کې لیکل سوي او په پنځو سوو مخونو کې ئې د هند و پارس د علماوو له کتابو څخه د (تصوراتو مبحثونه) راغونډ کړي دي، یوه سریزه او نهه مبحثه لري. وایي چې ځینو علماوو دغه کتاب د (تحافت منطقیان) په نامه هم بللی دئ. د دغه اثر یوه نسخه د ادبیاتو پوهنځي په کتابون کې خوندي وه.

۳۴. ابجد التواریخ (عربي): موضوع ئې د اسلام تاریخ دئ. پنځه سوه مخه لري او د لیکلو کال ئې ۱۲۵۲هجري قمري دئ.

حبو اخونزاده له خپلو معاصرو علماوو سره تل علمي او فرهنګي اړیکي ساتل. له دغو معاصرینو څخه ئې یو څو تنه دغه لاندي اشخاص دي:

ملا پیرمحمد الکوزی: د ملا احمد الکوزي (قاضي القضات) وروړ. نوموړی د (عقیدت المشایخ والعلماء) مؤلف دئ.

عبدالحکیم کاکړ د (رد حلیمیه عن مطاعن احمدیه) مؤلف: دا عبدالحکیم کاکړ باید له لوی میا صاحب عبدالحکیم

---

[15] اسرار العارفین د امام غزالي رحمه الله اثر دئ چې ملا شېرمحمد هوتک کندهاري په پښتو نظم د مثنوي په قالب کې اړولی او په ۱۳۲۶هـ ق کال د لاهور په اسلامیه مطبع کې چاپ سوی دئ. ملا شېرمحمد هوتک د لوی احمدشاه بابا د شرعي مشاور ملا شاهو (ملقب په ملاارادت) زوی وو.

[16] افغان - ملا عبدالباقي: تهذیب الواجبات لتخریب العادات: ۱۳۶ مخ - ۱۳۶٦ ش چاپ.

کاکړ (مشهور په نانا صاحب) سره مغالطه نه سي.

قاضي غلام هوتک: پر کندهار باندي د سردار کهندل خان د واکمنۍ په وخت کي د ښار قاضي القضات او ارشاد الحق مؤلف.

ملا عبدالحق خروټی (۱۲۹۰ق مړ): د عبدالغفور خروټي زوی په دیارلسمه هجري پېړۍ کي د کندهار له جیدو علماوو څخه وو. په آثارو کي ئې د (یاقوت السیر) او (شرح اربعین) نومونه یادولای سو. یاقوت السیر په ۱۳۶۷ش کال د ښاغلي سرمحقق زلمي هیوادمل له خوا ترتیب او په کابل کي خپور سوی دئ.

ملا کټه اخوند تره کی: ملا صاحب د خپل وخت مشهور مدرس عالم وو. د تدریس حلقه ئې د لوی احمدشاه بابا د زیارت په شمالي برخه کي په یوه مسجد کي فعاله وه. اصلي نوم ئې غلام محی الدین او په قام تره کی وو.

خان علوم قاضي عبدالرحمن: نوموړی د کندهار د علومي کورنۍ غړی او د خان ملا قاضي محمدسعید بارکزي زوی کېدی. د امیر محمدافضل خان او زوی ئې امیر عبدالرحمن خان په دربارو کي ئې ښه پوره عزت درلود. علومي کورنۍ د کندهار یوه مشهوره کورنۍ وه او د قضا پېشه پکښې موروثي راغلې وه.

د خرقي شریفي ملا عبدالحق: دا ملا صاحب په قام علیزی وو. د خپل وخت په علماوو کي ئې د (استاد کل) لقب درلود. دی د خرقي شریفي د متولي ملا محمدصدیق الکوزي استاد وو او نوموړي ورته د خرقې مبارکي د مسجد جامع د خطابت چاري د احترام او درناوي په منظور سپارلي وې. سید جمال الدین افغاني له همدې امله د (ملا عبدالحق خرقه) په نامه یاد کړی دئ. ملا عبدالحق علیزی د اروانباد عبدالرؤف بېنوا نیکه کېږي.

ملا محمداعظم اندړ (د غزني د ګیر وو): وايي دې سړي په امرتسر کي د استوګني پر وخت د ملا عبدالله امرتسري په نامه ډېر کتابونه کښلي دي.

سلطان محمد خان خالص: نوموړی د امیر شېرعلیخان په وخت کي د کندهار له مشهوور قومي مشرانو څخه وو، چي د خانۍ پر څنګ ئې د پوهي برخه هم درلوده. په تاریخ کي د پراخي مطالعې څښتن وو، پارسي شعر ئې هم وایه، دېوان ئې درلود. تاریخ سلطاني ئې چاپ سوی اثر دئ (۱۲۹۸ق)، د میوند په تاریخي غزا کي ئې برخه اخیستې وه[۱۷].

ملا محمدنور د ملا محمدحسن توخي زوی د جامع السلوک مؤلف. نوموړی د میا فقیرالله جلال آبادي شاګرد وو.

حبو اخونزاده په ۱۲٦۵هـ ق کال وفات سو[۱۸] او په کندهار کي د دوی په پلرنۍ هدیره کي چي د عیدګاه مسجد ختیځ لور ته

---

[۱۷] وګورئ: په [میوند د تاریخ څلي کي] د لیکونکي مقاله: [ویاړونه او میوندونه].

[۱۸] په (کندهار مشاهیر: ۱۷۳ مخ) او د (آریانا) مجلې د ۱۳۴۵کال د حوت په ګڼه کي د علامه فاضل کندهاري د مړیني کال ۱۲٦۳ ق ښوول سوی دئ، چي یوه تېروتنه ده او سمېده غواړي.

واقع ده ښخ دئ[۱۹]. د کندهار ښار د ډنډ چوک په ختيځ کي د کندهار - هرات پر لويه لار پروت منځنی ښوونځی د (فاضل کندهاري) په نامه نومول سوی وو. د علامه حبيب الله کندهاري تر پېژندني وروسته غواړم د ده له پښتو کتاب مهاج العابدين څخه يوه برخه رانقل کړم چي همدا به ئې د پښتو شعر د نمونې په توگه وگڼو:

| | |
|---|---|
| پس له حمده له صلوة | واوره ته نېکو صفاته |
| وايي تا ته دا فقير | چي دئ سراپا تقصير |
| مقصر او روسياه دئ | که ئې نوم حبيب الله دئ |
| چي زموږ شيخ د طريقت دئ | رهنما د حقيقت دئ |
| مقتدا د عام و خاص دئ | د محيط بحر غواص دئ |
| د احسان د درج گوهر دئ | د عرفان د برج اختر دئ |
| دی مجمع دئ د بحرين | هم جامع د کمالين |
| ولايت ئې احمدي دئ | کرامت ئې ابدي دئ |
| د ارشاد په ملک کښي شاه دئ | د تلقين پر فلک ماه دئ |
| پر اسمان د شرع نمر دئ | چي جهان پرې منور دئ |
| شمع دين نورالیقين دئ | مولينا فرح الدين دئ |
| په اعمال د شريعت کښي | په اشغال د طريقت کښي |
| هسي رنگه مستقيم دئ | چي نظير د ده عديم دئ |
| دواير ئې د ظلال | قطع کړی په کمال |
| تېر له هر عکسه و ظل دئ | اصل الاصل ته واصل دئ |
| په هر نقش کله بند دئ | جانشين د نقشبند دئ |
| د دې عصر بايزيد دئ | په کمال فريد وحيد دئ |
| طريقه ئې سبحاني ده | سلسله ئې رحماني ده |
| له توحيده باده نوش دئ | له تجريده خلعت پوش دئ |
| د تمکين مرکز ئې ځای دئ | د تفريد د اوج همای دئ |
| مکمل ظاهر باطن دئ | هم کاين دئ هم باين دئ |
| د هغو ميو ساقي دئ | چي طرب ئې تل باقي دئ |
| په تحقيق د دې موسم | چي سلگون دئ ديارلسم |
| دی د شرع مجدد دئ | هم د فقر مجدد دئ |
| ربه ته ئې فيوضات | کړې دايم او برکات |
| د ارشاد ظل ئې پيادار کړې | مريدان برخوردار کړې |
| د مخدوم نجيب فرزند دئ | چي عزيز او ارجمند دئ |
| منزلت ئې ډېر رفيع دئ | ميان زاده محمدشفيع دئ |
| په سيرت د ده شبيه دئ | ولد سرلابيه دئ |
| چي محکم لري همت | په ترويج د شريعت |
| ده دا هسي اشارت کړ | پر حقير ئې بشارت کړ |
| چي منهاج العابدين دئ | معتبر کتاب د دين دئ |
| يکښې علم د اخلاق دئ | مشرف شيرين مذاق دئ |
| مصنف ئې لوی امام دئ | چي دی حجت الاسلام دئ |
| محمد غزالي | چي رتبه ئې ده عالي |
| رحمت الله عليه | احسن الله اليه |
| په فارسي دئ دا کتاب | و عوامو ته درياب |
| په پښتو که دا کتاب شي | وسيله به د ثواب شي |
| دا فقير هيچمدان | که هر څو نه لري توان |
| چي پر هسي کار اقدام کړي | يا قيام پر دا مقام کړي |
| ولي بيا چي شه مامور | ځان ئې وشمېره معذور |
| ربه راکړې ته توفيق | قوت راکړې د تحقيق |

په حرمت د مخدومانو
په عزت د مقبولانو

[۱۹] اوس د کندهار ښار عمومي عيدگاه په صوفي دښت کي جوړه سوې ده.

يادونه:

په "پښتانه شعراء دوهم ټوک ۴۸۷ مخ" کي د مولوي عبدالمجيد کاکړ ژوندليک راغلی دئ. هورې داسي څرگنده سوې ده چي نوموړی مولوي د علامه حبو اخونزاده د کورنۍ غړی او د هغه شاگرد وو. د (فرهنگ زبان و ادبيات پښتو) ښاغلي مؤلف هم د پښتانه شعراء دغه روايت اخيستی دئ او ليکلي ئې دي چي "مولوی عبدالمجيد کاکړ ... از ارکان خانوادهٔ علمی علامه حبيب الله کاکړ بود". تذکرة الشعراء چي د ارواښاد سراج الدين سعيد او اروابناد مولوي صالح محمد هوتک په گډ زيار ليکل سوی دئ، د مولوي عبدالمجيد کاکړ لنډه يادونه لري، خو د علامه حبو اخونزاده له کورنۍ سره د هغه د نسبت خبره نه کوي او نه ئې د شاگردۍ يادونه لري.

زما د معلوماتو له مخي د علامه حبو اخونزاده په زامنو کي د عبدالولي او عبدالمجيد نومونه سته چي عبدالمجيد به غالباً هماغه سړی مولوي عبدالمجيد به غالباً هماغه مولوي عبدالمجيد کاکړ وي چي پښتانه شعراء ئې يادونه کړې ده. نوموړی د علامه حبيب الله کندهاري شاگرد او د خپل وخت تکړه عالم او فقير مشربه سړی وو. په ۱۲۲٦ق کال په کندهار کي زېږېدلی دئ. په ۱۲۸٦ق کال[۲۰] ئې پښتو (سيرت نبوي) په پنځلس زرو بيتو کي کښلی دئ، د خپل وخت ښه خطاط هم وو.

د کندهار په مشهورو کاکړو علماوو کي ما ته بل شخص هم معلوم دئ چي د علامه حبو اخونزاده له کورنۍ سره د خپښيو له لاري خپلوي لري او هغه ملا عبدالباقي افغان (۱۳۴۴ق مړ) دئ. د ملا عبدالباقي افغان مېرمن او د علامه حبو د لمسي زين العابدين اخونزاده مېرمن سره خوندي وې.

***

د نهم مخ پاته ...

**د ارواښاد عطايي د تاريخ ليکني ...**

تحليل هم نه سي کولای خو د لوړو دلايلو پر اساس د طالبانو دوره د کتاب د اخيري فصل په توگه اضافه کوي؛ بې له کوم قضاوته او بې له کوم تحليله.

* دا د ډيالکتيک يو ډېر تقليل سوی او سطحي بيان دئ. لکه څنگه چي دا بحث دلته فرعي دئ نو ټول جزئيات راوړل ئې مقاله اوږدوي. په دغه بحث باندي پوه لوستونکي دي زما عذر ومني.

**ماخذونه:**


په دې مقاله کي زما د شخصي يادښتونو او مطالعي تر څنگ ما د دغو کتابونو څخه گټه اخيستې ده:

۱- عطايي، محمدابراهيم. د افغانستان پر معاصر تاريخ يوه لنډه کتنه. ميوند ۱۳۸۹ز. کابل.

۲-کالينگوود، رابين. ت: مهديان. مفهوم کلی تاريخ. اختران ۱۳۸۵ز. تهران.

۳- علي، مبارک. ت: نويد احمد. د تاريخ فلسفه.


***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

**گل خبري**

- کله چي موږ وده کوو موږ نه بدلېږو خو هره ورځ په وضاحت سره زموږ اصليت څرگندېږي.
- زما مشوره دا ده چي واده وکړه، که دې ښه جوړه په نصيب سوه نو به خوشحاله ژوند ولرې او که نه نو بيا به فيلسوف درڅخه جوړ سي.
- د ستونزي څخه د تېښتي ښه لاره د هغې حل کول دي.
- هغه څوک چي د تازه مېوې هيله لري بايد د درختي سرته پورته سي.

[۲۰] په فرهنگ زبان و ادبيات پښتو کي دغه سنه ۱۲۹٦ق ده.

څېړندوی شېرشاه رشاد

# زموږ په کلتوري حقوقو کې د نورو لاسوهنې

کلتور یا فرهنګ چې په عربي کې ورته ثقافت، په انګریزي کې ورته کلچر او په پښتو کې ورته خدای بخښلي وزیر محمد ګل خان مومند "هڅوب" کلیمه کارولې او کله بیا "ژواک" کلیمه هم کارول سوې ده، د پوهې، معرفت، ادب، ښووني او روزني، علمي او ادبي آثارو او پوهني په معنا په قاموسونو کې راغلې ده.

څیني څېړونکي او پوهان په یوه ټاکلې دوره کې د بشر د یوې ټاکلې ډلې د ذهني او عیني پنځونو یا تخلیقاتو او ایجاداتو ټولګې ته هم کلتور وایي.

E.R.Tylor بیا کلتور داسې راپېژني:
کلتور د عقایدو، هنرونو، اخلاقو، قوانینو، آدابو او دودونو او ټولو هغو تمایلاتو، وړتیاوو او کسبي عادتونو یوه ټولګه ده، چې انسان ئې د ټولنیز غړیتوب پر مهال لاس ته راوړي.

مدنیت، تمدن او تهذیب هم له کلتور یا فرهنګ سره نېغ په نېغه تړاو لري، چې د نړۍ د انسانانو تر منځ داړیکیو بیان پکښې راځي او د بشر د یوې ډلې یا یوې سیمې فکر، ذوق، کړه وړه، روزنه، پالنه، دود او دستور د بشر نورو ډلو او سیمو ته لېږدول کېږي، چې بله ټولنه ئې هم و منلو ته زړه ښه کوي او هم په هغو کې مطلوبو او مقبولو برخو ته ارجحیت ورکوي.

د کلتور یا فرهنګ تداوم او ژوندي پاته کېده په داسې حالت کې کېدونې ده، چې جوړونکي عناصر ئې په ټولنه کې د انسانانو له خوا په خپله خوښه ومنل سي او د کوم چا یابلې ټولنې یا کومې حکومتي ادارې له خوا پر چا باندې و نه تړپل سي.

په اروپا کې انګرېزان په خپل دولت او حکومت، فرانسویان په خپله ژبه، المانیان په خپل قوم او نژاد ډېر ناز پېري (د ډاکټر خیرکیار مقاله "پښتون د متعصبو افغانانو...")

فرانسوي ښکېلاکګرو کله چې الجزایر او تونس ونیول، د خلګو د اهلولو له پاره ئې په دوی کې داسې تبلیغ کاوه، چې که تاسې غواړئ مدني، عصري او پرمختللي و اېسئ نو

په فرانسوي ژبه خبري کوئ او خپله عربي ژبه ئې ورته له عصريته او مدنيته ليري ښووله.

په پخواني شوروي کي هم د کوچنيو جمهوريتونو اولسونو شاوخوا گردو خپله مورنۍ ژبه له لاسه ورکړه هغه له دې اسيته، چي دوی ئې هم د ثقافتي تجدد په نامه له خپل ليکدود يا رسم الخط څخه ليري کړل او په دې توگه ئې له خپلو ديني، ادبي، کلتوري او تاريخي ميراثونو څخه پردي کړل، چي دا کرغېړنه تجربه په ترکيه کي هم پېښه سوه او د عربي الفبې پر ځای لاتيني الفبې وکارول سوه.

ترکانو د اروپايانو پېښې کولې، ايرانيانو بيا له ترکانو څخه دا پېښې زده کړې او د خپلي پاړسي ژبي پياوړتيائې د عربي ژبي د لغوي غنا په زوال او انزوا کي پلټله. (ډاکټر زمان ستانيزی، "پښتو د ژبني سياست، اولسي حساسيت، ادبي رقابت په ډگر کي")

او له بده مرغه زموږ ځينو افغانانو بيا د ايرانيانو پېښې شروع کړي دي.

د ښکيلاک يا استعمار د خپلسرو پرېکړو نوري بولگي هم په تاريخ کي لرو، چي د ټولو بيانېده دلته کېدای نه سي. يوازي په يوې بولگي به بسنه وکم. انگريزي ښکيلاکگرو په فلسطيني خاوره کي د يهودو د غښتلتيا له پاره د فلسطين د مطلق اکثريت په منځ کي عبري ژبه (د يهودو ژبه) رسمي اعلان کړه او نن ئې تاسي د پايلي شاهدان ياست.

د افغانستان په اړه هم د امريکا د مرکزي استخباراتو کومه احصائيه چي د ۱۹۹۲م کال د جولای په مياشت کي خپره سوې ده، پښتانه ئې په سلو کي ۳۸ (۳۸٪) او ژبه ئې په سلو کي ۳۵ (۳۵٪) ښوولې ده، چي د ټولو پخوانيو احصائيو خلاف واقعيتونه پکښې بيان سوي دي. په پخوانيو کورنيو او دباندنيو احصائيو کي چي په مختلفو وختو کي خپرې سوي دي او د افغانستان قومي جوړښت پکښې راغلی دئ، تر ټولو کښته عدد په سلو کي ۵۲ (۵۲٪) او تر ټولو لوړ عدد په سلو کي ۶۸ (۶۸٪) ښوول سوئ دئ.

د غلطو احصائيوو خپرېدل تر شا نور اهداف لري او موږ په افغانستان کي له ۱۹۷۹ م کاله راهيسي چي د بحران او طوفان په منځ کي راگير يو، يوه خبره راته يقيني سوې ده. که څوک د انترناسيوناليزم په نامه او يا له تروريزم سره د مبارزې په نامه پر افغانستان باندي را اوربدلي دي د افغاني ټولني ټولنيز نظام او کلتوري سيستم ئې ړنگ کړی دئ، دا ځکه چي ښکيلاک يا استعمار ذاتاً تعظيم طلبه او ابن الوقته يا سرټيټي کسان ډېر خوښوي او له هغو کسانو څخه ئې ښه نه راځي چي خپل کلتور او خپل حق پر گران دئ.

ملي هويت او ملت جوړونه پر کلتور يا فرهنگ ولاړه ده او کلتور پر ژبه ولاړ دئ او د ملت جوړوني پروسه هم بې له کلتوري حقوقو نامکنه ده.

د غلطو احصائيو پر بنسټ ټول دولتي امکانات او د هغو د نړۍ والو انډيوالانو مرستي د يوه قوم او يوې ژبي په گټه کارول او د يوې ژبي حاکميت ته تر حد زيات پام اړول، دې ته د نورو ژبو ويونکي د خطر په سترگه گوري. (د عادلانه نظام لار، اشرف غني)

پر غلطو احصائیو باندي واک ته رسېدلي او یا تر خپل حق ئې زیات څه لاس ته راوړي کسان بیا د خپل محسن یا ولي نعمت هره روا او ناروا خبره مني.

د افغانستان د اوسني لانجمن او کړکېچن حالت له عواملو څخه یو عامل د امریکایانو غلطي احصائیې دي، چي د هېواد د یو لوی اکثریت په کلتوري حقوقو ئې لوبي وکړې او په افغانستان کي اوسنی ژبنی سیاست په هره پلمه او هره دسیسه چي وي د پښتو ژبي د حق تلفۍ په موخه کارېږي او په دې اتڼ ځیني ښویېدلي او ناعاقبت اندېشه پښتانه هم ورګډ سوي دي.

ژبه د معنویت چینه ده او له دغه اسیته هیوادونه ملي او رسمي ژبي لري او له ټولنیز پلوه هم هر انسان په یوې کلتوري حوزې پوري اړه لري او د کلتور تر ټولو مهم او بنسټیز عنصر ژبه ده. په تېره بیا د کوچنیانو له پاره په خپله مورنۍ ژبه زده کړه کول، چي د افغانستان یو لوی اکثریت له خپل دغه کلتوري حق څخه محروم دئ. د هیواد زیاتره لوستي خلګ د خپلو تذکرو، نکاح خطونو، وثیقو، قوالو، دفتري مکاتیبو، قوانینو، لایحو، اصولنامو، تړون لیکو او د قضایي نظام د اسنادو د متن په ژبه نه پوهیږي او یا ئې سد نه ورلوېږي.

د وزیرانو د شورا (کابینې)، د اولسي جرګې او مشرانو جرګې غونډې، د سفارتونو، وزارتونو او ریاستونو تر منځ د اسنادو راکړه ورکړه ټول د هیواد د اکثریت په ژبه نه کیږي، چي دا یو فرهنګي تشدد دئ او له خپل کلتوري حق څخه د یو لوی اکثریت محرومیت دئ. که دا لړۍ داسي دوام وکي دا په یقین سره زړه ته واچوئ، چي پښتو او نوری محرومي ژبي به لکه د پامیري ګروپ ژبي واخي، شغني، یغنوبي، اشکاشمي، تخاري، سنګلیچي، مونجي پر مخ کوره سي او یا لکه هزاره ګي، چي له خپل اصل مغولي لهجې څخه د پارسي لهجې ته اړول سوې ده. اولس باید راویښ سي او خپل حقه حقوق باید وپېژني، خپل کلتوري یا فرهنګي حقوق وپېژني او د خپلي حق طلبۍ ږغ پورته کي، زموږ حق طلبي د هیچا حق تلفي نه ده.

په پای کي خپلي خبري د امریکایي ژورنالیست ایرک مارګولیس په دې سپارښتنه پای ته رسوم: "امریکا په افغانستان کي تر هغو سوله او ټیکاو نه سي راوستلای، تر څو چي د هیواد دېرکي (اکثریت) د خپل حق څښتنان نه سي".

علامه محمود طرزي وایي:

یو اولس په خپله ژبه او ژبه د هغې په ادبیاتو ژوندۍ پاته کېدای سي.

خان عبدالغفار خان (پاچاخان) وایي:

"... له چا نه چي ژبه ورکه سوې ده هغه ورک سوی دئ، او چا ته چي خپله ژبه سپکه سوې ده، هغه سپک سوی دئ".

پورتنۍ خبره د کابل پر دربارونو او ځینو کورنیو باندي او همدا راز د پېښور، کوټې، هرات، لغمان او کندوز د ښارونو پر ځینو کورنیو باندي هم خورا ښه صدق کوي.

ډاکټر داود اعظمي/لندن

# پښتو ژبه ملي شتمني او ملي مسئولیت

السلام علیکم او ستړي مه سئ!

تر ټولو مخکي د دې مهمې غونډې د جوړونکي مننه کوم چي پر یوه مهمه موضوع ئې د بحث او مشورې له پاره پوهان او د نظر څښتنان رابللي او خپل ملي مسئولیت ئې تر څه حده پر ځای کړی دئ.

زه د غونډې د تنظیموونکي کورودانی وایم چي ما ته ئې هم په دې اړه د څه ویلو او لیکلو موقع راکړه.

د سیمینار جوړوونکي له دې کبله هم د ستاینې وړ دي چي پښتو ژبې ته ئې د ډاکټر عبدالرزاق پالوال د خدمت او د هغه د کړاوونو او زیارونو یادونه او ستاینه وکړه.

په دغسي غونډو کي عموماً د اوږدو ویناوو له پاره ځای نه دئ. نو زه هم یوازي یو څو یادوني او وړاندیزونه لیکم چي ستاسي سره شریک کړل سي. که خدای کول پر دې موضوع به خپله یوه اوږده لیکنه د سیمینار د مقالو په ټولګه یا کوم بل ځای خپره کړم. هیله کوم تر تاسي پوري به هم درورسېږي.

ژبه د پوهاوي، پېژندګلوۍ او کلتوري ودې له پاره تر ټولو مهمه وسیله ده. خدای پاک ژبې خپل آیتونه یا نښانې بللې دي او وایي چي هر قام ته ئې د دې له پاره هم له هغوی څخه یو پېغمبر لېږلی چي د هغو په خپله ژبه د خدای پیغام وروروسوي او د خدای په حقانیت سم پوه سي.

خو په نړۍ کي د مخابراتي یا اطلاعاتي یعني Informative Technology له بې ساري ودې او د سفري استانتیاوو له ډېرېدو او ارزانېدو سره که له یوې خوا انسانان تر بل هر وخت ډېر سره نزدې سوي، له بلې خوا له دې سره ډېرو ژبو ته خطرونه هم ډېر سوي دي.

ژبه عموماً له څلورو حالتونو سره مخامخېږي او پر همدې بنسټ پر څلورو ډلو وېشل کېدای سي.

۱. مړې ژبې

۲. ژوندۍ ژبې
۳. د مرګ له خطر سره مخامخ ژبې
۴. مرګي حاله يا مړژوانده ژبې، يعني هغه ژبې چې د ځکندن په حالت کې دي.

دا چې يوه ژبه په دغو څلورو کې په کوم حالت کې ده، دا د هغې ژبې په ويونکو پورې اړه لري، چې خپله ژبه په کوم حالت کې ليدل غواړي. دا مهال په ټوله نړۍ کې شاوخوا پنځه زره ژبې ويل کېږي خو زياتره ئې د ورکېدو له خطر سره مخامخ دي او يو شمېر ئې مرګي حاله دي.

ژبه د يوې ټولنې له پاره د يوه معدن او طبعي زېرمې مثال لري، دا خپله ټولنه ده چې يوه فلز يا کانۍ ته ارزښت ورکوي او بل بې ارزښته ګڼي. دا ټولنه ده چې زرو او الماسو ته ئې اقتصادي او ټولنيز ارزښت ورکړی دئ.

که يو اولس يا يوه ټولنه خپله ژبه قيمتي او ارزښتمنه وګڼي نو قدر به ئې کوي او بې غوري به نه ورسره کوي. ژبه د يوه قيمتي معدن غوندي ساتنه او روزنه غواړي. د يوه معدن غوندي د ژبې انتظام او وده او استعمال او استخراج چې سم نه وي، نو د ګټې پر ځای تاوان راوړي او بې غوري ورسره کول ئې نفاق او بدبختي راوړي.

ژبه د يوې طبعي زېرمې غوندي د ټولنې ګډه شتمني ده او د ټول ملت مال ده.

دا د ټولنې د هر وګړي مسئوليت يا دنده ده چې خپله ژبه خوندي کړي او بډايه يا غني ئې کړي. د يوې ملي او طبعي زېرمې په توګه پر ژبه هم يوازې يو يا يو څو کسان دا حق نه لري چې بې ځايه تصرف يا تېری پر وکړي، لوټ ئې کړي او يا ئې هم خيرنه او کرغېړنه کړي.

نو په داسې حال کې د پښتو ژبې د ويونکو مسئوليت دا دئ، يا زه به ووايم چې د پښتو ژبې پر دوی حق دا دئ چې خوندي ئې کړي او له چور او تالان څخه ئې وژغوري. په دې لړ کې لومړی او زما په نظر تر ټولو مهم کار دا دئ چې د ژبې خواره واره ټکي يا توري راغونډ سي، خوندي سي او سره شريک سي.

د پښتو په غرو او رغو او بېلو سيمو او لهجو کې داسې بې شمېره توري سته چې د ورکېدو له خطر سره مخامخ دي. ډېر ئې اوس لا مړه سوي دي. دا د هر پښتون وظيفه ده چې دغه ټول الفاظ را غونډي کړي. دا ټکي د خپلې مور او انا څخه اوري، که ئې له پلار او نيکه څخه اوري، که ئې په کور کې اوري او که ئې د باندې اوري، که ئې له ځايي څخه اوري که ئې له کوچې څخه اوري.

پښتو لا تر اوسه په خپلو لهجو کې وېشلې او هره لهجه او هر سيمه کې که دغه کار وسي او پښتو به دومره بډايه او پانګه ولري چې د پرمختللو او ژونديو ژبو غوندي به نه يوازې د ژوند د هر ډګر ژبې کېدو وړتيا پيدا کړي، بلکې کوم سېلاب چې يو شمېر ژبې په مخ اخيستې او د هغه مقابله به هم په سمه توګه وکړای سي. د دې تر څنګ به د دې کار بله لويه ګټه دا وي چې ژبه به له مصنوعي کېدو څخه وژغورل سي. هغه نوي ټکي چې جوړول کېږي په هغو کې د ډېرو له پاره له وړاندې

څخه لا طبعي ټکي په بېلو سيمو او لهجو کي ستره.

زما بله خبره له نورو ژبو سره د پښتنو چلند او د پرديو ژبو په اړه د هغو د دريځ په اړه ده. پښتانه په عمومي توګه دا شکايت کوي چي د دوی په ګاونډ کي نوري ژبي ولي د دوی د خپلي ژبي په پرتله پياوړي دي او يا ډېر کار ورته کېږي. اوس دلته د دې وخت نسته چي د دې خبري پر تاريخي، سياسي او ټولنيزو عواملو او اړخونو باندي وړغېږو، نو ځکه زه مخامخ خپل وړانديز ته ځم، او هغه دا دئ چي پښتانه بايد له نورو ژبو سره له تعصبه ډک چلند و نه کړي او پر دې بايد خپله انرژي ضايع نه کړي چي بله ژبه کمزوري کړي يا ئې ټيټه کړي. د دې پر ځای بايد خپله انرژي او وړتيا د خپلي ژبي پر وده او پر مختګ باندي ولګوي. د نورو ژبو له زده کړي څخه مخالفت په کار نه دئ، ځکه يوه بله ژبه زده کول د دې معنی نه لري چي څوک خپله ژبه هېره يا تر شاه کړي.

يوه بله ژبه زده کول يو بل عمر تر لاسه کول دي، ځکه د بلي ژبي په زده کړې سره څوک د يوې بلي ټولني او اولس پوهه او تجربه په اسانه او ارزانه اخلي. د بلي ژبي زده کړه داسي ده لکه يو څوک چي په يوه بله ټولنه کي ټول عمر ژوند وکړي او د هغې ټولني د يوه وکړي په توګه رالوی سي. نو پښتانه نه يوازي دا چي نوري ژبي زده کړي بلکي د هغو په مرسته خپله ژبه نوره هم بډايه کړي.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي:

## ګل خبري

- که غريب سړی لاس و نه مينځي چټل ورته ويل کېږي او که ئې ومينځي ورته وايي چي اوبه دي ضايع کړې.
- هغه څوک چي پوهېږي چي کومي خوا ته بايد ولاړ سي ټوله خلک لار ورکوي.
- هر پرابلم په لاس کي ستا له پاره يو سوغات لري.
- د ژوند کيفيت د انسان د زړورتيا په تناسب دئ.
- که موږ په خپل ځان کي عيب و نه لرو د نورو د عيب له ليدلو څخه به هم خوند وانخلو.
- مهمه نه ده چي ته په کوم حالت کي يې. ته بايد هيڅکله، هيڅکله، يعني هيڅکله نا اميده نه سې. هيڅکله مه هېروه چي پخوا ته چيري وې، اوس چيري يې او چيري غواړې ولاړ سې!
- د لومړي ګام پورته کول هغه کرښه ده چي ګټونکي د بايلونکي څخه بېلوي.
- زما له پاره د نقل قولونو لوستل داسي ګټور دي لکه خپل ورځني ويټامينونه چي خورم.

پای



څېړندوی عبدالغفور لېوال/کابل

# اسطوره او ادبیات

دریمه برخه

**۲- اوډیسي** (Odysseus, Odyssey):

دا هم پر ۲۴ سرودونو وېشل شوې منظومه ده، چې خپل هیواد ته د یوه یوناني پهلوان د ور رسېدو پر هلوځلو کېنبل شوې ده.

مخکې مو وویل چې د ټرای جګړې تر پای ته رسېدو وروسته، کله چې یونانیان بیرته خپلو ښار دولتونو ته ستنېدل، د ارباب الانواعو له کسات او دوښمنۍ سره مخامخ شول، توپانونو د دوی کښتۍ ماتې کړې، ځیني ئې ډوب شول او ځیني نور ئې بېلابېلو ټاپوګانو یا هېوادونو ته ورسېدل، څوک د مصر سواحلو او څوک هم ایتالیا ته ولاړل، په دې منځ کې اولیس تر ډېرو سرګردانیو او بدو پېښو وروسته خپل هېواد ته ستون شو، اولیس څوک وو؟ اولیس (اوډیسي، اوډیسوس) د (لائیرت Laerte) زوی او د ایتاک ښار پاچا وو، چې د یوناني پهلوانانو او اتلانو تر منځ په تدبیر، هوښیارۍ، احتیاط او زړورتوب مشهور وو، ده هم په ټرای جګړه کې ونډه درلوده او د دې جګړې د ګټلو په برخه کې هماغومره چې د اشیل پهلوانیو ونډه درلوده، همدومره د ده هوښیارۍ هم کار ورکړی وو، تر جګړې وروسته کله چې دی هم د نورو یوناني مشرانو په څېر له خپل لښکر او ملګرو سره خپل هیواد ته ستنېده نو د سمندري توپانونو او ناوړه پېښو له امله ورک شو اوډیسي د هومر دوهم داستان په حقیقت کې کور ته د اولیس د ستنېدو داستان دئ.

توپان د دوی بېړۍ د (لوتوفاژانو) هېواد ته بوتلې، د اولیس ملګرو هلته داسي مېوه وخوړه چې خپله ماضي ئې هېره کړه او کور ته له ستنېدو یې ډډه کوله، اولیس خپل دا ملګري د بېړیو په څوکیو پوري وتړل او سفر ته ئې دوام ورکړ، خو برخلیک له داسي ټاپوګانو څخه

تېریدو ته اړایستل، چې له دېوانو، شیطانانو او نورو بلاوو څخه ډکې وې، یو ځل ئې ملګرو د یوې سترګې دېوانو په ټاپو کې د یوه لوی یوسترګي دېو (پولیفم) خوراک شول، خو پاته ئې د اولیس په تدبیر او چل وژغورل شول، بیا د بادونو ټاپو ته ولاړل او له توپان سره مخامخ شول، بل ځل د لویې کوډګرې (سیرسه) په ټاپو کې د دې ښځې د کوډو له لاسه په خوګانو بدل شول، خو بیا هم د اولیس په هوښیارۍ وژغورل شول. اولیس په داسې پېښو کې خپل ټول ملګري له لاسه ورکړل، له ډېرو کړاوونو او بدو ورځو وروسته یوازې یوه داسې ټاپو ته ورسېده، چې خاونده ئې کالیپسو ربة النوعه وه، دې مېرمنې د اولیس هرکلی وکړ او پرې مینه شوه، ورته وئې ویل چې که له هغې سره پاته شي، نو تلپاته ژوند به وروبخښي، خو اولیس خپل هیواد ته ستنېدل غوښتل او خپله وفاداره مېرمن او کورنۍ ئې نه هېروله. کالیپسو په بېلابېلو بهانو اولیس اووه کاله له ځان سره وساته، تر دې چې زیئوس مداخله وکړه او کالیپسو ته ئې امر وکړ، چې اولیس پرېږدي. اولیس له لرګینو دړو څخه یوه بېړۍ جوړه کړه، خو ژر په توپانونو کې ماته شوه او دی دې ته اړشو، چې په لامبو ځان یوې وچې ته ورسوي، دا وچه د (فئاسینانو) ټاپو وه، د دې ټاپو پاچا د اولیس درناوی وکړ او یوه بېړۍ ئې ورکړه، چې ځان خپل ښار ایتاک ته ورسوي، خو راځئ وګورو چې د ده په کور کې څه تېرېدل.

دا شلم کال وو، چې اولیس له کوره راورک وو، مېرمن ئې پنلوپ چې ده ته وفاداره وه په ځان پسې دروازې تړلي وې او شپې ورځې ئې د ده په غم کې تېرولې، ګومان ئې کاوه چې اولیس مړ دئ. پلار ئې لائیرت بوډا شوی او له ښاره بهر وتلی وو، او مور ئې د ده له غمه ځان وژلی وو. د اولیس زوی تلماک، چې د ده د تللو پر مهال لاماشوم وو اوس نو په یوه زړور او ښکلي ځوان بدل شوی وو. درباریانو ښغمه د اولیس پر شتمنۍ مزې چړچې کولې او د ده غوایان او پسونه ئې وړیا خوړل. یوازې دا نه ول، بلکې ګڼو درباریانو چې د پاچاهي شوق درلوده د ده له ښځې غوښتل چې یو پکښې خوښ او ورسره واده وکړي، خو پنلوپ په هوښیارۍ سره ځان ساته، یوه پلمه ئې دا وه چې خپل خُسر لائیرت ته کفن اوبي او چې دا کار ئې خلاص کړ بیا به پر دې فکر وکړي، هغې هره شپه په پټه خپل د ورځې اوبدلی کار بېرته پرانیسته او په دې توګه د کفن اوبدلو کار نه خلاصېده. پنلوپ بل شرط هم ایښی وو او هغه دا وو چې دا به یوازې له هغه چا سره واده کوي، چې د دې د خاوند (اولیس) ځانګړې لینده راکاږي او غشی له هغو ګوتمیو څخه وباسي چې کتار ایښوول شوي وې، ښکاره ده چې دا کار پر ته له اولیس څخه هیچا نه شو کولای.

اولیس په همداسې حالاتو کې د یوه سوالګر په جامه کې خپل ښار ته ننووت کله چې خپل کور ته ورسېده، پر ته له زاړه او فاداره سپي څخه ئې هیچا و نه پېژانده، سپي هم چې خپل خاوند شل کاله وروسته ولیده له ډېرې خوشالۍ څخه مړ شو. اولیس د خپلې مېرمنې شرط واورېده او د سوالګرو په جامه کې ورغی

او خپله لینده ئې راواخستله لینده ئې په زور او مهارت راوکاږله او شغ شو چې غشی ئې له ټولو ګوتمیو وایسته، درباریان هک حیران ول، په دې وخت کې اولیس ځان وروپېژانده او د وتلو دروازه ئې بنده کړه، بیا ئې د خپل زوی تلماک په مرسته ټول بدنیته رقیبان ووژل او ځان ئې خپلې وفادارې مېرمنې ته ورساوه. په دې توګه د اولیس خوشحاله ژوند له خپلې پاته کورنۍ سره بیرته پیل شو.

د هومر دواړې منظومې د اساطیري، تاریخي او افسانوي اهمیت تر څنګ خورا لوړ ادبي ارزښت هم لري، په تفصیل سره د پېښو بیان او د هرې صحنې په زړه پورې تصویر جوړونه ښیي، چې دواړې منظومې د عادي راویانو حکایتونه نه، بلکې د پخې قریحې خاوند شاعر (یا شاعرانو) پنځونې دي، چې د لرغوني شاعرۍ په هنر بشپړ برلاسی لري.

ایلیاد له حماسي شور او وجد څخه ډکه منظومه ده، چې پېښې ئې د جنګي او رزمي صحنو په بشپړ تفصیل بیان شوي دي . په دې منظومه کې د پهلوانانو د جګړې، خوځښتونو، وسلو، زغرو او حربي تکتیکونو ذکر راغلی دئ، په تشبیهاتو او استعارو سره ئې د بیان ښکلا لاپسې زیاته کړې ده. مبالغه او اغراق ځای ځای د کیسې تلوسه لا پسې زیاتوي. د بېلابېلو پېښو تسلسل او یوه له بلې سره د منطقي تړاو په تار پېیل، نه یوازې دا چې ښیي د منظومې ټول سرودونه د یوه شاعر کلام دئ، بلکې دا هم ښیي، چې د پېښو داستاني پیوند او تلوسې ته پام ساتل شوی دئ.

اوډیسه بیا یو څه توپیر لري، دا د جګړو د ډګرونو پر ځای د بېلابېلو سیمو راپېژندنه او د یوناني مدنیت او ټولنیزو ارزښتونو ذکر کوي، په دې کې افکار او فلسفي مکالمات هم ځای شوي دي، خاوند ته د ښځې وفاداري او پر کورنیو ارزښتونو باور ئې اصلي موضوعات دي. اوډیسه موږ ته دا راښیي، چې لومړني ښار دولتونه څنګه رامنځته شول. ایلیاد د پهلوانیو د زمانې کیسه کوي، چې هلته د برترۍ معیار پر زړورتوب، جګړې او وژنو ولاړ دئ، ان ارباب الانواع هم یوازې د جګړې په اړه فکر و عمل کوي، خو په اوډیسې کې د یوه مدني ژوند نور اړخونه لکه تجارت، کرنه، مالداري، حکومت، کورنۍ جوړول، سیاحت، د ښارونو او مدنیتونو تر منځ تګ راتګ، مینه او ښکلایي ځانګړني دي. په هرصورت، چې له خپل بحث څخه لیرې نه شو، په دواړو منظومو کې د اساطیري پېښو، څېرو او پایلو پریمانه حضور وینو، په ایلیاډ کې ارباب الانواع او الهې په جګړو بوختي دي، خو په اوډیسې کې د دېوانو، اساطیري ځناورو، کودګرو، شیشکو او بلاوو حضور وینو چې د اسماني موجوداتو په اراده یا د هغوی په وړاندې سر راپورته کوي.

هومر په دې دواړو منظومو کې د لرغونیو یونانیانو باورونه، وهمونه، عقیدې او ارزښتونه راپېژندلي دي. په دې منظومو کې د ماوراء الطبیعي کردارونو او کرکټرونو تر څنګ تاسو د یوه عادي انساني ژوند پرېمانه نخښې هم موندلای شئ، هغه وخت یونانیانو څنګه ژوند، کار، زده کړه، سیاست او سفرونه کول. ښارونه څنګه جوړېدل، پاچاهۍ څنګه

جوړېدې او د وېرې، مرستي غوښتلو او مصيبتونو پر مهال انسانانو پر کومو ځواکونو تکيه کوله؟ او دا ټول د اساطيري ادبياتو ځانګړني او کمالونه دي، چي موږ د لرغونيو انساني ټولنو له عقيدو او ارزښتونو سره اشنا کوي.

راځئ د دې منظومې د يوې هيجاني برخي ازاده پښتو ژباړه ولولو، د کيسي په پای کي سره له دې چي د اوليس زوی او خدمتګارانو هغه پېژندلی دئ او مېرمن ئې هم يقين ته نږدې شوې ده، خو دغه پاکلمنې ښځه نه غواړي ژر تسليم شي، له ډېرو ازموينو او نخښو وروسته کله چي پوره ډاډ مومي چي ترمخي ولاړ سړی ئې رښتيا خاوند (اوليس) دئ نو: ... هغې په ژړا مخامخ ورمنډه کړه، خپلي متې ئې د اوليس په غاړه کي ورواچولې او په داسي حال کي چي هغه ئې پر تندي ښکلاوه ورته وېي ويل:

اې اوليسه! له ما څخه مه خپه کېږه، ځکه ته تل تر ټولو هوښيار نارينه وې.

آه! ارباب الانواعو موږ د بدمرغۍ له پاره ټاکلي وو، زموږ پر خوشالۍ او ښادۍ د هغوی رخه راتلله، هغوی دا نه شوه ليدلای چي موږ يو د بل تر څنګ ژوند وکړو او د ځوانۍ له خوږو څخه خوند واخلو او سره يو ځای زاړه شو. دا دئ اوس نو پر ما مه غوسه کېږه او مه خپه کېږه، چي ولي مي له اوله ښکل نه کړې، داسي چي اوس دي ښکلوم. ځکه تل مي زړه په ګوګل کي لړزيده او وېرېدم، چي نه وي دلته يو نارينه راشي او ما په خپلو خبرو وغولوي، ځکه داسي خلک ډېر زيات دي چي پرته له تېرايستلو او فريب څخه بل څه په سر کي نه لري. نه، که دارګوس له ښځو څخه هغه يوه ښځه، هېلن ښيبم، چي د زئيوس لور ده، که هغه پوهېدای، چي د يونانيانو زړور زامن به ئې بېرته خپل کور او هيواد ته راستنه کړي، نو هيڅکله به ئې د پرديو غېږي ته ځان نه تسليماوه. بېشکه چي له ارباب الانواعو څخه کوم يو ئې د هغې د رسوايي او بدنامۍ غوښتونکی وو، خو له پيل څخه د هغې زړه نه وو، چي داسي ګناه دي وکړي، هغې په دې ګناه زموږ له پاره هم ډېر دردونه او رنځونه وزېږول ... دا دئ اوس دي چي ټولي نخښي سمي وويلې باور مي راغی او زما زړه يو ځل بيا درته رام شو". (اوديسه: ۵۲۴مخ).

## ۳- اوديپوس، پاچا او ديپ، د اوديپ تراژيدي (Oedipus):

ګڼ کره کتونکي فکر کوي، چي په يونان کي د (تراژيدي) پيل د پاچا اوديپ له ډرامې څخه کېږي. د اوديپ کيسه ګڼو شاعرانو او ليکوالو نظم کړې او ليکلې ده، تر ټولو لرغونی روايت ئې د (کينه تون) په نامه يوه شاعر پوري منسوب دئ، چي د (لاکدايمون) اوسېدونکی وو او په اتمه مخزېږدې پېړۍ کي اوسېده، (فرهنګ آثار ۵۸۶ مخ – لومړی ټوک) تر ده وروسته ګڼو ډرامه ليکونکيو او شاعرانو د اوديپ د غميزي په اړه ليکل وکړل، خو تر ټولو مشهوره او تلپاته ډرامه ئې د سوفوکل (سوفوکلس Sophocles) ډرامه ده، چي د ۴۳۰ مخزېږدي کال په شاوخوا کي ليکل شوې ده، پخپله سوفوکل په ۴۹۶ مخزېږدي کي زېږېدلی او په ۴۰۶ کي مړ دئ. (فرهنګ

اثار ۵۸۶ مخ). ارستو د سوفوکل دغه ډرامه شهکار ګڼلې ده، دا چې د پاچا اودیپ اسطوره ولې دومره مشهوره ده، چې ګڼو مشهورو لیکوالو څو څو ځله لیکلې ده او ان نومهالي اروپوهنې ته ئې هم لار موندلې، وروسته به پرې خبري وکړو، خو اوس راځئ د دې کیسې لنډیز ولولو: د تب (تبس، تبای) ښار پاچا لایوس (Laios) ته غیب ویونکو وویل، چې د هغه په کور کې به یو زوی وزیږي او چې ځوان شي نو خپل پلار به ووژني او له خپلې مور سره به واده وکړي. پاچا د تقدیر له دغې پریکړې څخه د تېښتې له پاره خپل زوی هغه شپانه ته سپاري، چې د ده رمې ساتي، او امر ورته کوي، چې ماشوم له ښاره لیرې په بیدیا کې ووژني، شپون نه شي کړای دا ښکلی ماشوم ووژني، نو هغه د (کرنت) سیمې یوه بل شپانه ته ورکوي، چې له تب ښار څخه ئې لیرې بوځي. دغه شپون ماشوم وړي او د خپل ښار پاچا ته ئې ورکوي، ماشوم د دغه پاچا په دربار کې رالویږي، هغه یو پلټونکی او د پوهې تږی ذهن لري، غواړي د هر څه په حقیقت پوه شي، په ځوانۍ کې د غیب ویونکو له خوا په خپل برخلیک خبریږي، هو د ده تقدیر دا دئ، چې پلار به وژني او له مورسره به واده کوي، ادیپ له دغه دوزخي برخلیک څخه دومره وېریږي، چې خپل کور پرېږدي، ځکه دی فکر کوي، هغه پاچا او شاه مېرمن چې دی ئې روزلی، د ده رښتیني پلار و مور دي. ځوان او سرګردانه ادیپ روان دئ او غواړي له خپل برخلیک څخه وتښتي، چې په لاره کې له داسې یو بګۍ سره مخامخ کیږي، چې یو سړی پکښې سپور دئ، د ده او د سړي تر منځ شخړه پېښیږي او ځوان ادیپ دغه د شاهانه بګۍ خاوند وژني (بېشکه چې دا سړی هماغه د تب پاچا لایوس او د ادیپ رښتینی پلار دئ) اودیپ خپل مزله ته دوام ورکوي او بالاخره د تب ښار ته رسیږي، خو د ښار په دروازه کې په یوه عجیبه بلا ورپېښیږي دا بلا هماغه ابوالهول یا سفینکس (Sphinx) دئ چې له خلکو څخه د یوې معمې پوښتنه کوي او چې لاروي ئې په ځواب و نه پوهېدل نو هغوی وژني او خوري یې، ابوالهول داسې ځناور دئ چې سر یې د بنیادم او تنه یې د وحشي سپي یا زمري ده او خورا ویرونکی شکل لري. ابوالهول د هر لاروي په څېر له اودیپ څخه هم خپله معما پوښتي او ورته وایي:

ووایه! هغه څه دئ چې سهار پر څلورو پښو ځي، غرمه پر دوو پښو او مازیګر پر دریو پښو تګ کوي؟ هوښیار ادیپ تر څه فکره وروسته ځواب ورکوي: دا انسان دئ، چې په ماشومتوب کې خاپوړې کوي، په ځوانۍ کې پر دوو پښو ګرځي او په زړښت کې د لکړې په مرسته ځي. ابوالهول، چې د لومړي ځل له پاره د خپلې معما حل اوري، نو طلسم ئې ماتېږي او ځای پرځای مري. د تب خلک چې د ابوالهول له لاسه په تکلیف دي او ډېر عزیزان ئې ورڅخه خوړلي دي، له اودیپ څخه د یوه اتل په توګه هرکلی کوي، خلک هغه ته د خپل ژغورونکي په توګه د وژل شوي پاچا تخت او تاج وربخښي او د هغه کونده شاه مېرمن (یوکاستا Jokaste) هم ورودوي، تقدیر خپل کار کوي او اودیپ پرته له دې چې خبر وي د

خپلې ربښتينې مور مېره کېږي. عمر تېرېږي او پاچا اوديپ له خپلې مېرمنې څخه د لونو خاوند کېږي، مګر د تب په ښار کي سخته وبا ګډه وي او ډېر زيات خلک وژني. اوديپ د (اپولو) مزدک ته ځي او له کاهنانو څخه د وبا لامل پوښتي، کاهنان ورته وايي چي هغه سړی بايد جزا ووينې چي ګناه ئې کړې ده، هغه ګناهګار چي خپل پلار ئې وژلی دئ او له خپلې مور سره ئې واده کړی دئ. اوديپ اندېښمن دئ، دا کيسه له خپلې مېرمنې سره شريکوي، مېرمن ئې ورته وايي د کاهنانو په خبرو پسي مه ګرځه، ځکه زما د پخواني مېړه په اړه ئې هم وړاندوينه کړې وه چي د خپل زوی په لاس به وژل کېږي، خو داسي و نه شول او د کوم پردي په لاس ووژل شو. خو د اوديپ پلټونکی ذهن قانع نه شو، په لټون ئې پيل وکړ تر دې چي د دربار يوه زاړه خدمتګار چي د دې ټولي کيسې شاهد پاته شوی وو، کيسه سپينه کړه او اوديپ په ټول حقيقت خبر شو، هغه بالاخره خبر شو، چي په لاره کي وژلی سړی ئې پلار او اوسنۍ مېرمن ئې خپله مور ده. اوديپ له ډېره غمه چيغې کړې: "بدمرغي په پوهېدلو کي ده!" او خپلې سترګي ئې پخپله له کاسو څخه راوويستلې، مېرمن او مور ئې (يوکاستا) خپل ځان زيندۍ کړ او ړوند اوديپ په ناخبرۍ کي د خپلو ګناهونو په دوزخ کي تلپاته سوزېدو ته اړ ووت.

دا دئ، د سوفوکل د ډرامې له متن څخه به د يوې برخي ازاده پښتو ژباړه راوړو، چي د کيسې هاغه برخه بيانوي، چي ړوند اوديپ له خپل اوښې او ماما (کرئن) سره خبري کوي، دی غواړي د خپلو لونو سرپرستي او د تب پاچاهي دواړه د خپلې مور او مېرمن ورور ته سپاري، دی چي ډېر غمجن دئ، خپلي لوڼي او کرئن داسي مخاطب کوي:

اوديپ:

کرئنه! د خدای رحمت دي پر تا وي

او لاره دي تر ما ډېره هواره او روښانه

اوسه! او اهای زما خوږو لوڼو!

چيري ياست؟

راشئ او د خپل ورور لاس و نيسئ!

هغه لاسونه، چي ستاسي د پلار سترګي

ئې وايستې. هغه سترګې، چي يو مهال تاسو

په مهربانۍ پېژندلې. خو اوس همدې لاسونو

پرې د تيارو پردې غوړولي دي

ستاسو ورور چي کله ستاسو پلار شو

هيڅ ئې و نه ليدل او پوه نه شو، چي څه کوي؟

دا سترګي اوس تاسو نه شي ليدلای،

خو له تاسو سره يو ځای ژړلای شي.

ستاسو د راتلونکي ژوند له پاره اندېښنه

لرم چي له نړۍ سره به څنګه مخامخېږئ؟

په جشنونو او خوشاليو کي

د برم او پرتم په ورځو کي

تاسو غمجنې او خواشينې

او نړۍ خوشاله او مسته

هغه شېبې چي نور به خوشالۍ کوي

خو تاسو به ځيګرخونه او خپه کور ته

راستنيږئ اه، هغه وخت چي ستاسو د واده او

ګډ ژوند زمانه شي

نو کوم نارينه به پيدا شي،

چي له تاسو سره واده ته زړه ښه کړي؟

کوم نارینه به دا ننګ پر غاړه واخلي،
چې له تاسو سره ګډ ژوند پیل کړي؟

داسي نجوني چې له خپل وروره
راز پرېږدلي دي. تر دې بدر نګه نوم چيري دئ؟

هغه پلار چې خپل پلارېي وواژه
او پر هغې غېږې ورپريوت
چې پخپله ورڅخه راز پرېږدلی وو
او له هغې ښځې څخه ئې بچي راوز پږول
چې پخپله هم ورڅخه ز پرېږدلی وو.

نو ټول هغه نارینه چې پرتاسو د ننګ داغ
ږدي. څنګه به له تاسو سره واده ته زړه ښه کړي؟

زما لوڼو! هیڅوک به ستاسو نه شي.

او تاسو به د شنډو نجونو غوندي
همداسي زړې شئ!

نو اې کرئنه! چې لا هم د دوی یوازینی
خپلوان یې یوازي ته ئې پلار یې

نه مور چې دوی مو نړی ته راوړلې
خو اوس ئې هیڅ هم نه کیږو.

دغه بې کسه نجوني
نه ښايي، چې بې مېړه او بې کوره پاته شي.

همداسي سرګردانه او بدمرغه ئې مه
پر پرده د هغوی پالنه وکړه

چې خوارې دېري معصومي او کشراني دي.
دوی له تا پرته ټولو یوازي پر ېښي دي
ایا ته به همداسي وکړې؟

نو اې زما دوسته!

لاس دي راکړه او ژمنه وکړه "کرئن
لاس ورکوي" زما لوڼو! دېري خبري شته،
چې کله لويي شئ نو پرې پوه به شئ، خو اوس
ئې لا زغم نه لرئ! نو دعا وکړئ!

چې برخلیک مو روښانه وي

او تر خپل پلاره ښه ژوند ولرئ!

(افسانه های تبای: ۱۳۴ - ۱۳۵ - ۱۳۶ مخونه pdf)

د اوديپ اسطوره ولي دومره مهمه ده؟ فلسفي مفسران ئې فکر کوي، چې اوديپ د پوهي او خِرد له پاره د انسان د لټون او تندي سمبول دئ، يو ځای د اوديپ له ژبي لولو: "ويې لټوئ، چې ويې مومئ، که ئې و نه لټوی، نه ئې شئ موندلای!" او تراژيدي ئې هم دلته ده، چې کله سرې وپوهېږي، نو ایله خبر شي، چې دا ئې د بدمرغۍ پيل دئ، ایا انسان د خپلې ناپوهۍ له پاره افسوس خوري؟ کله کله انسان له داسي حالت سره مخامخ شي، چې وایي: کاشکي نه پوهېدای او يا کاشکي په دې هيڅ خبر نه وای؟ اوديپ چې د تقدير له لوبي خبر شو او په خپل بدمرغه برخليک وپوهېده ، نو ويې ويل: "بدمرغي په پوهه کي ده!" تر دې زمانې عموم باور پر دې دئ، چې پوهه نېکمرغي راولي؟ د اوديپ تراژيدي د دې سرچپه ېښنه زباتوي. ایا ژوند پوچ دئ؟ ایا د هستۍ د راز لټون بې پايلي دئ؟ ایا انسان په خپلو بدمرغيو د پوهېدو له پاره هست شوی دئ؟ ایا انسان په دې محکوم دئ چې بالاخره خبر شي، چې څومره (مجبور) او ناتوانه دئ؟ د اوديپ له کيسې او پوښتنو څخه ګڼي پوښتني راز پږي. د ابوالهول سېمبوليک حضور او د هغه پوښتنه هم يوه عجيبه قرينه ده، ابوالهول د اوديپ د سفر له پيله هغه متوجې کوي چې د هغه منزل ( انسان) دئ، د پاچا اوديپ تراژيدي له همدې سېمبوليکي قرينې څخه لوستونکي او اورېدونکي ته اشاره کوي، چې هر څه په انسان کي دننه پيښېږي. د اوديپ کيسه د انسان په وجود او روح کي دننه روانه ده او هره ورځ

تکرارېږي. اوديپ په ماشومتوب کې شوم ګڼل کېږي او ټول ورڅخه کرکه کوي، په ځوانۍ کې د يوه ښار ژغورونکی او اتل دئ، چې خلک ئې هرکلی کوي، په زړښت کې د خپل شوم برخليک بلهاري دئ چې بايد خپل غمونه خپله وژاړي او په يوازيتوب کې ومري. د اوديپ تراژيدي د غم تداوم دئ. د هغه د مېرمنې او مور يوکاستا تراژيدي د هغې له مرګ سره پای ته رسېږي، خو ړوند اوديپ بايد د خپلو ناپايه غمونو ټول درد وڅکي. د ابوالهول د معما درې واړه برخې د هغه په ژوند کې تجربه کېږي او دا په لږ و ډېر توپير د ټول بشريت تجربه ده، تر هغو چې ته نورو ته احتياج يې خلک دي نه خوښوي، خو کله چې نور تا ته احتياج دي ته ټولو ته ګران يې؟ ايا دا د انساني ژوند تر ټولو ريښتينې، خو ترخه تجربه نه ده؟ چې ډېر ځله ئې د پټولو هڅه کوو؟

پاچا اوديپ د ځان پېژندنې ډرام دئ. د اپولون د معبد پر يوه دېوال ئې ليکلي: (ځان وپېژنه!) هغه وخت چې اوديپ په ګناهګار قاتل پسې ګرځي تر ډېرې پلټنې وروسته (ځان) ته رسېږي، (ځان) مومي او تر ځان پېژندنې وروسته ئې بدمرغي پيلېږي.

د اوديپ اسطورې د اروپوهنې پر نړۍ هم اغېز وکړ، د دې ډرامې تر ليکل کېدو سلګونه کاله وروسته د نوې اروپوهنې بنسټوال اوتريشي زيګموندفرويد (Sigmund Freud) په هلکانو کې د پلار په وړاندې جنسي عقده د (اوديپ عقده) نوموي او په دې باور دئ، چې کوچني هلکان له خپلو ميندو سره دومره مينه لري، چې په دې مينه کې له پلار سره د رقابت تربريده رسېږي او دا رقابت په يوه داسې عقده بدلېږي، چې د ده په نظر ئې د (پاچا اوديپ) په ډرامه کې سېمبوليک تمثيل شوی دئ. فرويد په خپله يوه مشهوره علمي خطابه کې وايي:

"د پاچا اوديپ اسطوره، چې په دې لرغونې افسانه کې اوديپ خپل پلار وژني او له مور سره واده کوي، له لږ بدلون سره د همدې ماشومانه هيلې ښکارندويه ده، چې وروسته له محارمو سره د نږديوالي په توګه پېژندل شوې ده او په کلکه د کرکې او مخالفت وړ ګرځېدلې ده". (روانشناسي، فرويد: ۱۳۷ مخ).

د اوديپ اسطوره په ادبياتو کې دومره د پام وړ ده، چې په بېلابېلو زمانو کې د بېلابېلو ډرامه ليکوالو، شاعرانو او داستان ليکونکيو له خوا بيا بيا ليکل شوې ده، ګڼو کره کتونکيو، ليکوالو او څېړونکيو څېړلې او ارزولې ده.

هومر په خپل تلپاته اثر اوديسې کې هم د اوديپ کيسې ته اشاره کړې ده، د دغې منظومې په يوولسم سرود کې راوي د مړيو له نړۍ څخه د خپلې ليدنې په يوه برخه کې وايي: "... او بيا مې د اوديپ مور ښکلې اپيکاست (يوکاستا) وليدله، چې له خپل نادان زړه او بدرنګه عمل سره هلته وه، هغه چې د خپل زوی ښځه شوه، د هغې زوی تر دې وروسته چې خپل پلار وواژه د خپلې مور مېړه شو...". (اوديسه: ۲۴۷).

د يونان بل ستر ډرامه ليکونکي يوروپيدس (۴۸۴- ۴۰۶ مخزيږدی) هم دا ډرامه بيا ليکلې ده، لوکيوس انايوس سېنکا (۶۵- ۴ مخزيږدي)، استانيوس (پوبليوس پاپينيوس ۴۵ - ۱۰۰ ميلادي) او تر دوی وروسته په منځنيو پېړيو او رنسانس دوره کې جووامی اندريا دل انګويلارا، کورني، جان درايدن، اندره ژيد، ژان کوکتو او څو نورو سترو ليکوالو هم د اوديپ برخليک ډرامه کړی او منظومه کړی دئ (فرهنګ آثار: ۵۶۶...).



ليک: عبدالکریم عامر /لورالايي

# د پښتو ترغيب المصلي درې قلمي نسخې

ترغيب المصلي د پښتو کتاب دئ. چې مانا ئې لمونځ کوونکي ته ترغيب ورکول ده. دا کتاب په منظوم رنگ په مثنوي کې اوډل سوی دئ، بحر ئې اته څپه ايز دئ.

د ترغيب المصلي مؤلف اختر محمد نومېږي، په اخترمحمد صاحبزاده او اختر محمد اخوندزاده سره يادېږي، پلار ئې ملا گلداد اخوند نومېده؛ لکه چې وايي:

چې زما پير هم مې اب کېږي
ملا گلداد اخوند نومېږي

د کندهار د احمدشاهي ښار په جنوب شرقي برخه کې ئې يوه کوڅه هم په نامه سته[1].

اخترمحمد په قام کاکړ وو. پرهېزگاره سړی وو. اولاد ئې نه درلود. د کندهار د کوهک کلي اوسېدونکی وو. د ده پلار ملا گلداد اخوند د امير شېرعلي خان (۱۲۷۹ق = ۱۸۶۳ع څخه تر ۱۲۹۶ق = ۱۸۷۹ء مږ)[2] په وخت کې وفات سوی دئ.

اختر محمد کاکړ د پښتو ژبې شاعر وو. د ژوند زمانه ئې ديارلسمه هجري پېړۍ ده. د زوکړې او مړينې په اړه ئې ما ته څه په لاس راغلي نه دي. د خپل کتاب ترغيب المصلي په اړه وايي:

هر هغه چې نماز گزار وي
دا کتاب به ئې په کار وي
خصوصاً بيا چې افغان وي
عربي و دۀ ته گران وي
پر هغه به نور واجب وي
که په دين پسې طالب وي
کوم خواست زه له يارانو
د کتاب له ناظرانو

که یو ځای پکښې خطا وي
چې هېر شوی به له ماوي
هغه ځای دي دوی صحي کا
هسې نه چې عیب جویي کا
که څوک غواړي زما نوم
چې ئې ځان ته کړي معلوم
په نامه اختر محمد یم
امتي د محمد یم
خاک پای د علما یم
هم خادم د فقراء یم
خاص هغه چې مي پیران دي
پیشوایان نقشبندیان دي
اوس باید چې دوی بیان کړم
سلسله د دوی عیان کړم
په ترتیب یاد همگي کړم
تاریک زړه پرې نوراني کړم

تر دې وروسته د خپل پلار نوم او ذکر سوې سلسله راوړي. چې څلوېښت ته نژدې شعرونه جوړېږي.

د "ترغیب المصلي" قلمي نسخې هم لږ موندل کېږي، ما ته ئې بله قلمي نسخه په مخه نه ده راغلې، په دې اړه مي د پښتو اکیډمۍ پېښور (فهرست مخطوطات پشتو اکیډمي)، د پروفیسر میکنزي (Catalogue of Pashto Manuscripts the libraries of the British isles ، ۱۹٦۵ع چاپ) د بلومهارټ (Catalogue of Pashto and Sindhi manuscripts in British Museum ، ۱۹۰۵ع چاپ) د استاد زلمي هیوادمل (د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې، ۱۳٦۳ل چاپ)، (د پښتو د ادبي تاریخ خطي منابع، ۱۳٦٦ل چاپ) د عبدالقدیر مشتري (فهرست نسخ خطي پشتو آرشیف ملي افغانستان، ۱۳٦۵ل چاپ) د ډاکټر محمد حسین تسبیحي (فهرست الفبایي نسخه های خطي کتابخانۀ گنج بخش، ۲۰۰۵ ء چاپ) د حنیف خلیل (A catalogue of Pashto manuscripts in Pakistan ، چاپ ۲۰۰۹ع) کتلي دي. ښایي په کندهار کې ئې نسخې موندل شي. استاد عبدالشکور رشاد (۱۳۳۹ - ۱۴۲۵ ق) په خپل اثر "د کندهار زیارتونه" (۲۰۱۱ع چاپ) کې د دې نسخې ځیني شعرونه راوړي دي. نو ښایي له دهٔ سره ئې هم یوه نسخه وه، چې دا شعرونه ئې څني را نقل کړي ول.

ما د پښتو قلمي نسخو د څېړلو په سلسله کې د "ترغیب المصلي" درې قلمي نسخې لیدلي دي، چې د پښتنو په ځاني کتابتونو کې خوندي دي، زه د پښتو ادب څېړونکو ته دغه درې قلمي نسخې څرگندوم، چې د قلمي خزانې د پراختیا سوب وگرځي:

(۱)

دا لومړۍ نسخه چې د کتابت نېټه ئې نه ده څرگنده. پر کاتب مې دا گومان کېږي، چې شاعر پخپله دئ؛ خو څرگند ټکي نه لري.

د دې نسخې خط نستعلیق دئ، چې خوندور نه دئ. ډېره لویه نسخه ده. په سوو مخونه لري. په توره سیاهي باندي په غټو حروفو باندي لیکل سوې ده. چې د لیک له جوره د نظم خیال نه ور باندي کېږي. دا نسخه داسې پیلېږي:
کل ثنا چې څوک وایینه
خاصه خدای لره ښایینه

چې دی رب العالمین دئ
هم ارحم الراحمین دئ
هم عزیز دی هم حکیم دئ
پر هر شي باندي علیم دئ

د پای شعرونه ئې داسي دي:

کَه څوک غواړي زما نوم
چي ئې ځان ته کړي مالوم
په نامه اختر محمد یم
امتي د محمد(ص) یم
خاک پای د علما یم
هم غلام د فقرا یم
هسي شان کتاب مرقوم سو
په پښتو سره منظوم سو

ترقیمه نه لري.

خط ئې بې خونده دئ. خو په ویلو کي ګراني نه پېښوي. ډېر لوی لوی ټکي کاړي. د قلم له سره ئې سیاهي هم ډېره توی سوې ده. چي ځای په ځای له متن په ایسته هم ټکي لري. دا نسخه له سید خیر محمد عارف سره په ځاني کتابتون (کوټه) کي خوندي ده. (کله چي ما دا یادابښتونه اخیستل هغه وخت د سید خیر محمد عارف کور په "بوري" کي وو).

(۲)

دا دوهمه نسخه ۲۱ × ۱٦ کچه لري. متن ئې ۱٦ × ۹ سانتي متره دئ. په یوه مخ کي ئې ۱٦ کرښي راغلي دي. خط ئې نسخ دئ. د کاتب نوم ئې حبیب الله دئ. د کتابت نېټه ئې ۱۲۸٦ ق ده چي د "ملا" له پاره ئې کښلې ده؛ دا نه دي څرګند چي کوم ملا دئ. دا نسخه ۱۱۷ پاڼي، ۲۳۴ مخونهٔ لري. په توره سیاهي پر خړ کاغذ باندي لیکل سوې ده. سر لیکونه ئې په شنګرف (سره سیاهي) باندي کښل سوي دي؛ چي داسي پیل کېږي:

"رب یسر بسم الله الرحمن الرحیم تمم باالخیر

کل ثنا چي څوک وایینه
خاصه خدای لره ښایینه
چي دی رب العالمین دئ
هم ارحم الراحمین دئ
هم عزیز دئ هم حکیم دئ
پر هر شي باندي علیم دئ
غیب دانه هم بصیر دئ
پر هر شي باندي قدیر دئ
دی اول بې بدایت دئ
هم آخر بې نهایت دئ
دی غني بې احتیاج دئ
کل جهان دهٔ ته محتاج دئ
دی خالق د کل عالم دئ
که څه جن که څه آدم دئ
که څه زیر که څه بالا دي
که څه زمکه که سما دي
که دنیا ده که عقبا
دي همه د دهٔ پیدا
نقصان نه لري په ذات کښي
په اسما هم په صفات کښي
هر صفت یې د کمال دئ
د لویي او د جلال دئ
په همه وو دی موصوف دئ
کامل شان د دهٔ معروف دئ

د پای شعرونه ئې داسي دي:

"د امام پیشوا هم عین

دی خپل پلار امام حسین
د حسین هم مربي
دئ خپل پلار حضرت علي
علي وړی بې غایته
فیض و نور له آنحضرته
آن حضرت خیر البشر دئ
چي د کل عالم رهبر دئ
له حسابه تیر درودونه
هم بې شماره سلامونه
دي پر دهٔ پر کل نبیانو
هم پر آل پر اصحابانو
ربه تل وي ستا له لوري
د قیامت تر ورځي پوري
شکر تالره اې خدایه !
چي کتاب تم شو تر پایه
هر چي لوست د دې کتاب که
ښه دعا دي زما په باب که
چي ایمان مي سلامت شي
عاقبت مي په خیرت شي
تمت الکتاب الافغاني
المسمي بترغیب المصلي
صلی الله تعالی علیه وسلم و اله و اصحابه اجمعین

د دې نسخې ترقیمه داسي راغلې ده:

"تمت ۱۲۸٦ لااله الا الله محمد رسول الله برای ملا بد ستخط حبیب الله رحیم کشیدیم".

که څو کرښي د دې نسخې پر لیک دود وکاږم نو هغه به داسي وي:

(چه) د "چي" له پاره، (ے) د "ي" او "ی" له پاره، (دي) د "دی" او "دې" له پاره ، (ځ) د "ځ" له پاره، (ک) د "گ" له پاره، (په او له) په توري پور گډ کاږي.

دا نسخه په دوه کالمه کي لیکل سوې ده. چي په یوه کرښه کي ئې پوره بیت راغلی دئ.

کاتب حبیب الله ئې د ښه خط خاوند دئ. په لاس کي ئې رواني ښکاري. په لیک کي ئې کوږ والی نسته. توري ئې ښه څرگند کښلي دي. لومړی مخ ئې څه پانه ځیري سوې ده او داووم بیت څو حرفونه ئې بل چا په بې خونده خط وربا‌ندي کښلي دي. ځیني نور ځایونه هم په بیتونو کي توري د بل چا له خوا ورسره کښل سوي دي او د پای پر مخ باندي درې جدولونه هم لري. چي تاویزان ئې پکښي کښلي دي. خو خط ئې د کاتب حبیب الله نه ښکاري. بل چا دا ورسره زیات کړي دي. له دې څخه دا څرگندیږي، چي دا نسخه خپل ارزښت درلوولی دئ او لوستونکي لري. چي د هغو له خوا ئې نیمگړي ځایونه ور بشپړ کړي دي. دا نسخه د مولوي رحمت الله مندوخیل په کتابتون (ږوب) کي خوندي ده.

(۳)

دا دریمه نسخه ۲۴ × ۱٦ کچه لري. متن ئې ۲۰ × ۱۱ سانتي متره دئ. په یوه مخ کي ۲۱ کرښي راغلي دي. خط ئې نسخ دئ. چي بې خونده دئ. د کاتب نوم ئې گل محمد دئ. چي د ملا ولي زوی، د ملا نذیر نمسی دئ. د کتابت نېټه ئې ۱۴ شوال المبارک ۱۳۱۷ ق ده. دا نسخه ۱۹۴ مخونه لري. په توره سیاهي پر خړ کاغذ باندي لیکل سوې ده؛ چي داسي پیل کېږي:

بسم الله الرحمن الرحیم
کل ثنا چي څوک وايينه
خاصه خدای لره ښايينه
چي دی رب العالمین دئ
هم ارحم الراحمین دئ
هم عزیز دی هم حکیم دئ
پر هر شي باندي علیم دئ
غیب دانه هم بصیر دئ
پر هر شي باندي قدیر دئ
دی اول بې بدایت دئ
هم آخر بې نهایت دئ

د پای شعرونه ئې داسي راغلي دي:

چي عارف رباني دئ
بوقاسم کرکاني دئ
د قاسم چي مربي دئ
بوعثمان مغربي دئ
دا عثمان چي بیا مخدوم دئ
بیا علي کاتب ئې نوم دئ
د کاتب پیر لوی ولي دئ
بوعلي رود باري دئ

کاتب ترقیمه په داسي ډول لیکلې ده، چي د ده د شاعر حیثیت هم څرګندوي:

"تمت تمت تمت
خط باقي عمر فاني
اللهم مغفرلي
زه له عیبه پور یم
په خطا سره مشهور یم
ظاهر سپین باطن خیرن یم
و الله ته مختورن یم
قهر مه کوه راباندي
که خطا پکښي وي وراندي
که څوک ماله دعا وکه
په دیدار دې رب اوبه که

سنه ۱۳۱۷ هجري المبارک مورخه ۱۴ شوال المبارک کاتب عاجز گل محمد ولد ملا ولي ولد ملا نذیر غفر الله لهما"

لیک دود ئې داسي دئ:

(ده) د "دا" له پاره، (چه) د "چي" له پاره، (دوعا) د "دعا" له پاره، (غولام) د "غلام" له پاره، (څ) د "خ" له پاره، (دي) د "دی" (موربي) د "مربي" له پاره راوړي.

په دې نسخه کي اختر محمد له دې بیته وروسته:

په نامه اختر محمد یم
امتي د محـــــمد یم

تر څلویښتو زیات بیتونه د خپلو پیرانو او ولیانو په عقیدت کي وراندي کړي دي او هر یوئې په نامه یاد کړی دئ.

دا نسخه په دوه کرښیزه جدول کي اوډل سوې ده. ځای په ځای ئې کرښه یوه وي. لومړی مخ ئې څیني گل کاري هم لري. د مخونو له پاره ئې رکابونه راوړي دي. د کاتب لهجه داسي ښکاري، چي کاکړ دئ. د ده په ځاني بیتونو کي دغه لیک دود څرگند دئ. خط ئې خوندور نه دئ. په لوستلو کي هم گراني پېښوي او توري هم سم نه کاږي. د پای پر مخ یې درې څلور کونجه مهرونه لگېدلي دي. چي د لوستلو نه دي. دا نسخه د مولوي رحمت الله مندوخیل په کتابتون (ږوب) کي خوندي ده.

ما چي د درو سره نسخو شعرونه ځای په ځای و لوستل، نو د کاتبانو لاس وهني هم

پکښې ښکاري، د درو سره نسخو په شعرونو کې ډېر ځایونه د تورو له لاري توپیر سته او ځای په ځای ځیني شعرونه نه لري. کاتبانو د شاعر شعرونه پرې ایښي دي، یا ئې د شاعر په نامه ځیني له ځانه ورسره زیات کړي دي. چې د نسخو د شعرونو شمېر زیات و کم کېږي. دا پر بکړه هلته امکان لري، چې د شاعر په لاس لیکلې نسخه وکتل سي، که چیري ئې له چا سره شتون امکان لري.



## مأخذونه:


(۱) رشاد، عبدالشکور، د کندهار زیارتونه - علامه رشاد اکېډمی کندهار چاپ ۲۰۱۱ع - ۲۱۵ مخ.

(۲) حبیبي، عبدالحی، د افغانستان تاریخي پېښلیک، لومړی ټوک - کابل چاپ ۱۳۵۳ ل - ۲۰۴ مخ- رشاد، عبدالشکور، د کندهار زیارتونه - علامه رشاد اکېډمی کندهار چاپ ۲۰۱۱ع - ۲۱۶ مخ.






محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# سَماع او وَجد

# په اسلامي عرفان او روښاني طریقت کښي

(۱)

**۱) سَماع او وَجد په اسلامي عرفان کښي**

**الف) سَماع:**

سماع (د سین په زوَر) په لغت کښي و آروېدؤ، خواړه اواز (آواز)، غِناء، نغمې او ترانې ته وایي، چي مؤږ یې په ننني عامه او مروجه اصطلاح موسیقي بولؤ[1]. دغه راز، ځینؤ د سماع عربي ټکی د نڅا، خوشالي، مجازي وَجد او هغه اواز په مانا هم راوړیٔ دیٔ، چي د آروېدونکي حالت پر بل حال واړېي (واړوي)[2].

سَماع او وَجد له هغو عرفاني مسألو څخه دي، چي نه یوازي یې د شریعت او معرفت د پلویانؤ تر منځ و ژورؤ تضادو، مخالفتو او جنجالو ته لمن وهلې ده، بلکي په تصوّفي او عرفاني نړۍ کښي (کښي یې) هم د بېلابېلؤ او حتا متضادؤ نظریو و رامنځته کولؤ ته لار پرانیستي ده. پټه دي نه یي (وي)، چي سماع او غِناء د شرعي او فقهي عُلؤمؤ له نظره، په عمومي توگه، بد او ناوړه کار گڼل سویٔ دیٔ. د اسلام د سپېڅلي دین د سُنت او جماعت په څلورؤ فقهي او فکري مکتبو (حنفي، مالکي، شافعي او حنبلي) کښي د ځینؤ توپیرو په لرلؤ سره د سماع د کراهت، بدعت او آن حرمت تر پولي خبري سوي دي. د شیعه مذهب په بېلؤ بیلؤ ډلؤ کښي هم، په دې اړه بېلابېلي نظریې وړاندي سوي دي. په دې مانا، چي زیاترؤ متشرع عالمانؤ یې سماع او غِناء له لویه سره حرامه گڼلې ده، ځینؤ یې ناوړه یا مکروه بللې ده؛ او ځینؤ نورؤ یې د اِباحَت او جواز په پلوی فتوا ور کړې ده.

په دیني او مذهبي کړیو کښي د سماع د کراهت او حرمت د اثبات له پاره په ځینؤ قرآني ایاتو (آیاتو) او نبوي حدیثو اِستِناد کیږي. ځینؤ مذهبي عالمانؤ، سماع د «لهو و لعب»،

«فسق و فساد»، «زور و باطل»، «صوت الشیطان»، «صوت الاحمق» او داسې نورۀ په نوّمو یاده کړې ده، چې د دې (دوی) په ګومان څوک له قرآني ذکر څخه لیرې ساتي. دلته د دغه راز نظریو او دلایلو له تفصیل او شنني څخه ډډه کوو؛ ځکه دا اوږده بحثونه مو د شرعي او فقهي عُلوُمو و پراخي دوُنیا (دنیا) ته بیایي، چې څېړنه او شننه یې د دې کوچنۍ عرفاني رسالې تر حوصلې او روحیې وتلې ده (په دې اړه د نورو مالوماتو دپاره وګورئ: «سماع در تصوّف» ۴۰– ۵۵ او د «رسالۀ مانع سرود» په نامه هغه پښتو تحقیقي لیکنه، چې د محمد رفیق د «روضة النعیم» د (۲۸– ۳۹) مخو پر عمودي حاشیو یا څنډو کښل سوې ده (دغه کتاب، په ۱۳۰۵ هـ. ق.کال د سیداحمد او ګل احمد په پرمایښت، د لاهور په مُصطفایي مطبعه کښې چاپ سوئ دئ).

له سماع او وجد سره د دیني او مذهبي حلقو پر راز راز مخالفتو او انتقادو سربېره، په دغو حالتو کښې د موزونو ټکو ترنُم، د شریعت او طریقت د پلویانو له خوا په ګډه منل سوئ دئ:

– د حاجیانو ترانه، چې د کعبې شریفې صفت بیانیي.

– هغه څه چې غازیان یې په جنګ او غزا کښې د جنګیالیو د هڅوني او روحیې لوړولو دپاره وایي.

– د ویاړني هغه شعرونه او ټکي، چې جنګیالي یې د زړورتیا او اتلوالۍ دپاره وایي.

– د واده، ولیمې، عقیقې او داسې نورو خوښیو پر مهال سماع[۳].

مذهبي عالمانو غوُندې په تصوّفي او عرفاني حلقو کښې هم د سماع او وجد په باره کښې بېلابېلې رایې او نظریې تر سترګو کیږي. د اسلامي تصوّف او عرفان مخکښ او ځلانده ستوری – شیخ فریدالدین عطار نیشابوري (۵۴۰ – ۶۱۸ هـ ق) په خپل مشهوّر اثر «تذکرة الاولیاء» کښې د سماع په اړه د ځینو عرفاني مخکښانو نظریې راوړې دي، چې له هغو څخه ځیني په دې ډوَل دي:

مصري ذوالنون (په ۲۴۵ هـ.ق کښې مړ) ویلي دي: «سماع د خدای تعالی پیغام دئ، چې زړوُنه د هغه و لور ته پارېي. که څوک په حق سره سماع واروي، نو و حق ته لار مومي؛ او کې په نفس سره واروي، په کوّپر (ګفر) او الحاد کښې لوېږي. ښه اواز، انسان د خدای و لوري ته هڅیي؛ او په دې توګه د حقیقت موّندني د یوې مهمې وسیلې په توګه کار کیي (کوي)». بل وتلي عرفاني مخکښ – شبلي قدس الله روحه (۲۴۷هـ.ق/ ۸۶۱ع – ۳۳۴هـ.ق/ ۹۴۶ع) د سماع په اړه داسې ویلي دي: «ظاهر یې فتنه، خوُ باطن یې عبرت دئ.» د سری سقطی (په ۲۵۷ هـ.ق کښې مړ) له نظره، په سماع کښې د مینانو زړوُنه خوښې مومي؛ د توبه کوّنکو زړوُنه ببره احساسیي؛ او د عاشقانو زړوُنه اور اخلي. سماع پر شاړه مځکه د هغه اوُربښت په څېر ده، چې له برکته یې شینزګي او سمسورتیا را ټوکیږي؛ و پاکو زړو ته هم د سماع په رسېدو سره، ډېرې پټې ګټې رسیږي. لکه څنګه چې کوچنیان د ښه

اواز په آروېدو سره ارامي او سکون مومي، سماع هم و نازکو او ناروغو زړونو ته شفا ور بخښي. سماع د انسان پر هر غړي ښه ښه اغېزه کيي. کله يې مسېدا او کله يې ژړا ته اړ باسي؛ کله يې لاس ښورولو، کله يې نڅا او کله يې هم بېسدۍ او بېهوښۍ ته بيايي. ځينو ويلي دي، چې سماع د حق تعالی له خوا، د انسان په زړه کښي د اور لگول دي. البته، دا اور يوازې د هغه چا په وجود کښي بليږي، چې زړه يې په مينه او نَفس يې په مجاهده کښي سوځ يي»(۴).

ځينو سماع د حقيقتو د خزانې کيلي، د اروا خواږه او د عرفاني سالکانو د زړه دوا گڼلې ده. ځيني عرفاني سالکان باور لري، چې د رباب زړه وړونکې ترانه او د شپېلۍ اروا بخښونکی اواز د عارف روح له هري بلي خوا څخه د حق تعالی و لور ته ور تولیي(۵).

د زړه و خاوندانو ته، چې د موسا (ع) په څېر اسرار آروېدونکي غوږونه لري، له هره شي څخه د خدای تعالی ږغ پورته کيږي. داسي کسان له هري ذرې څخه اسماني اواز آروي؛ ځکه نو د حال، شوق، جذبې او وجد احساس کيي. دا ږغ که د مؤذن اواز يي که د قرآن تلاوت يا د لاروي د تېرېدو ږغ يا د چنگ او رباب ږغ ياد باد او سېلۍ د سېرهار ږغ يا د اوبو د شوړهار ږغ يا د بېلابېلو ژوو ږغونه يا د چمن د مرغانو نغمې.

د اسلامي عرفان لارويان وايي سماع يا موسيقي روح ته سپېڅلتيا او ځلا ور بخښي؛ او د ريښتيني سالک په زړه کښي د ميني او عشق څپې پياوړي کيي. البته، د دۍ په عقيده په دې اړه اساسي خبره دا ده، چې سماع باید یوازې د هغه چا له خوا واروېدل سي، چې په سر کښي د حق تعالی مينه او ولوله ولري. په بله وينا، سماع پر هغه چا حرامه ده، چې د دې صفت خاوند نه يي(۶).

د تصوفي او عرفاني افکارو مؤرخان په دې باور دي، چې د څلرمي - پينځمي هجري سلۍ/ سدۍ عارف - ابو سعيدابوالخير (۳۵۷ - ۴۴۰ هـ ق) د هغو صوفيانو له ډلي څخه دئ، چې واردواره يې د سماع غوَنډي په خانقاوو کښي باب کړي دي(۷).

په پير هرات يا خواجه عبدالله انصاري هروي مشهوړ - شيخ الاسلام ابو اسماعيل بن محمد (۳۹۶هـ ق/ ۱۰۰۶ع - ۴۸۱هـ ق/ ۱۰۸۸ع) په خپله «محبت نامه» کښي د وجد په اړه کاږي: «وجد د وصال او فراق تر عالم وروسته دئ. وجد، د عاشقانو د ويښتوب عالَم دئ. وجد، د دوستانو د زړه بڼ دئ. وجد، د عاشقانو د اروا ريحان دئ. وجد د ځان بايللو سَوَب (سبب)؛ او د کور و کهول له منځه وړل دي»(۸).

شيخ شهاب الدين ابو حفص عمر بن محمد سهروردي (۵۳۹ - ۶۳۲ هـ ق) په خپل مشهوړ عرفاني اثر «عوارف المعارف» کښي يادونه کيي، چې د سماع په غوَنډه کښي گډون بايد له پاک نيت، سپېڅلي زړه او پت سره ملگری يي. په داسي غوَنډو کښي بايد له شوخۍ او نَوس (نفس) پالني څخه په کلکه ډډه وسي(۹). د شيخ سهروردي په «عوارف المعارف» کښي د رسول الله (ص) د وجد خبره هم سوې ده(۱۰).

شېخ ابوالقاسم جُنید ابن محمد جُنید بغدادي (په ۲۹۷ یا ۲۹۸ هـ ق کښې مړ)، شېخ محی الدین ابوحامد عبدالقادر جیلاني (۴۷۱ هـ ق / ۱۰۷۸ع – ۵۶۱ هـ ق / ۱۱۶۶ع)، شېخ اکبر محی الدین ابن اعربي (۵۶۰ – ۶۳۸ هـ ق)، خواجه معین الدین چشتي (په ۶۶۳هـ ق/ ۱۲۴۳ع کښې د هند په اجمیر کښې مړ)، شېخ فریدالدین شکرگنج، شېخ نظام الدین الاولیاء دهلوي (۶۳۸هـ ق/ ۱۲۳۸ع – ۷۲۵هـ ق/ ۱۳۲۵ع) او ځیني نور گرده د هغۆ لویۆ تصوّفي او عرفاني مشرانۆ له ډلي څخه دي، چي سماع او وجد یې د روحاني تزکیې او الهي قرب د وسیلې په توگه خوښ کړي دي[۱۱].

وتلی او منلی عرفاني لاربنود – شېخ ابوالحسن علي ابن عثمان ابن علي هجویري (په ۴۶۵هـ ق کښې مړ) په خپل مشهوّر عرفاني اثر «کشف المحجوّب» کښې د سماع د ادابو او دودو په باره کښې داسي لاربنووَنه کیي: «د سماع یو ادب دا دئ، چي تر څو په خپله را نسي باید ویې نه کئ؛ یاني سماع باید هیڅکله د خوی او عادت له مخي و نسي»[۱۲].

په امام غزالي مشهوّر، وتلی متشرع صوفي– حجة الاسلام ابوحامد محمد بن محمد بن احمد (۴۵۶ هـ ق/ ۱۰۵۸ع – ۵۰۵ هـ ق/ ۱۱۱۱ع) په خپلۆ مشهوّرو اثارو «کیمیای سعادت» او «احیاء العلوم» کښې د سماع په اړه خورا ارزښتناکي او په زړه پوري خبري کړي دي. دی وایي: سماع ساز او اواز دئ، که د کار او عادت له مخي یې حرام دي. سماع، یوازي هغه وخت روا ده، چي ښکلی او ښایسته اواز د حق تعالی د میني او جمال پېژندني په مخسد ویل سوئ یې. یوازي دغه راز سماع، په انسان کښې روحاني خوښي او وجد را منځ ته کیي. امام غزالي زیاتیي: سماع، وجد او جامې څیرل هغه مهال روا دي، چي له هر ډول حرمته ژغورلي یې. یاني په سماع کښې باید ښځي، کړل، دین ته بد رد ویل یا د روافضۆ هغه شعرونه و نه ویل سي، چي د اصحابۆ غندنه او بدگویي پکښې سوې یې. امام غزالي، په سماع کښې و دغۆ ټکۆ ته پام کول ضروري گڼي:

– له ښځي یا داسي هلک څخه سماع حرامه ده، چي شهوَت و پاریي.

– سماع باید له ځینۆ آلاتۆ لکه رباب، چنگ او بربط سره نه یې؛ خو د ډول، درېې او سورنا په څېر آلې حرامي نه دي.

– په سماع کښې باید داسي ترانې او شعرونه و نه ویل سي، چي د چا ښکنځنه، غندنه او بدوینه پکښې راغلې یې.

– د سماع آروېدۆنکئ باید ځوان نه یې، چي د سماع له اثره په شهوت کښې ډوّب سي یا د ویښتانۆ او نور خال و خط په لیدو سره لار اوگودر ورک کي.

– د عوامۆ سماع د خوښې او ساتیري په ښه روا ده، خو په دې شرط چي تل تر تله نه یې. یاني د کار او دندې شکل و نه لري[۱۳].

امام غزالي، په خپل نامتۆ اثر «کیمیای سعادت» کښې د سماع د آدابو په اړه یادوَنه، چي په سماع کښې باید د حضرت جنید له وینا سره سم، و درو موضوعاتۆ یا مسألو (زمان، مکان او اِخوان) ته جدي پام وسي. زمان په دې مانا، چي سماع باید هیڅکله د زړه د

بۆختیا، لمانځه، خوراک او داسي نورۆ پر مهال نه يي. مکان په دې مانا، چي سماع بايد په بېخونده او تاريکۆ ځايو يا د ظالم په کور کښي نه يي. د اِخوان مانا دا ده، چي د سماع په غوَنډه کښي حاضر کسان بايد ټول د سماع وړ کسان يي. ياني د سماع په روحاني او عرفاني مفهوٚم بايد ښه پوه يي. په دې ترتيب، د امام غزالي د عرفاني نړيليد له مخي، هغه سماع بې گټي ده، چي په غوَنډه کښي يې د دوٚنيا او تکلف ځښتنانوٚ، متکبر او منکر سندرغاړي، بې خبره کسانوٚ او د ښځوٚ يا ځوانانوٚ داسي ډلي برخه اخيستې يي، چي د يو بل په باره کښي ناروا او ناسم سوچوٚنه کيي. امام غزالي، د سماع په غوَنډه کښي، د ښځو او غافلوٚ ځوانانوٚ د گډوٚن په اړه زياتيي: «داسي سماع بايد ونسي، چي هلته پر ښځو سربېره، غافلو ځوانانو هم برخه اخيستې يي؛ او يو بل ته د شهوَت په سترگه وگوري. دا کار د فسق او فساد منشا ده. د سماع وړ کسان بايد، د سماع پر مهال سرونه کښته واچيي؛ او يو بل ته و نه گوري؛ لاس او پښې و نه ښوريي؛ په تکلف سره هيڅ حرکت و نه کي؛ لکه ځنگه چي په لمانځه کښي ناست يي، د سماع په غوَنده کښي هم همغسي کښېني؛ او ټول زړه و حق تعالی ته ځرمه کړي»[14].

امام غزالي، په خپل بل اثر «احياء العلوم» کښي ليکي، چي د سماع آروېدوٚنکی بايد له ناستي ځخه ولاړ نسي؛ او په ژړا اواز پورته نه کړي؛ خو کې د ځان واک په لاس کښي نه وٚ، ياني بې ريا او بې ارادې يې و نڅا او گډا ته لاس واچاوه؛ يا يې نابېره ځان د ژړا په حال کښي وليدئ، دا کار نو بيا روا دئ؛ ځکه چي ژړا له غم او خواشينۍ ځخه پيدا کيږي؛ او نڅا د خوښۍ او خوشالۍ ځرگندوی ده. په داسي حالاتو کښي بايد نور آروېدوٚنکي له نڅا ځخه پرهېز وکي؛ او د هغه چا حالت گډوډ نه کي، چي د ميني او ولولو له جوشه، په وجد او نڅا اخته يي.

د اسلامي تصوٚف او عرفان تلپاته ستوری - مولانا جلال الدين بلخي رومي (۶۰۴ - ۶۷۲هـ ق) له هغو وتلو او منلو عرفاني مفکرانو ځخه دئ، چي د سما ع او وجد په ستاينه کښي خورا په زړه پوری خبري کړي دي. د حضرت مولانا په عرفاني نظريو کښي د رباب ږغ د جنت د دروازې اواز بلل سوئ دئ[15]. مولانا بلخي، په خپل مشهوٚر عرفاني اثر «مثنوی معنوی» کښي د شپېلۍ زړه وړوٚنکی اواز، د ميني له اوره بولي، نه د باد له اغېزې؛ او له دې اور ځخه د بې برخي زړه د نابودۍ غوښتنه کيي:

«آتشست اين بانگ نای و نيست باد
هر که اين آتش نـــدارد نيست بـاد
آتش عشــــقست کانـــدر نی فتـاد
جوشش عشقست کاندر می فتاد»[16]

مولانا رومي، د ميني په بې سدۍ کښي د نڅا او گډا فلسفه داسي بيانيي:

«جـــانهای بســـــته اندر آب و گـل
چـــون رهـــــند از آب و گلهـا شـاد دل
در هـــــوای عشق حق رقصـــان شود
همچو قرص بدر بی نقـــصان شـــود
جسمشان در رقص و جانها خود مپرس
وانکه گيرد جان از آنها خود مپرس»[17]

مولانا د «مثنوی معنوی» په څلرم ټوک کښې د ابراهیم ادهم د مهاجرت په اړه داسې وايي:

«لیک بد مقصـــودش از بانگ رباب
همچو مشـــتاقان خـیال آن خطـاب
ناله ســـرنا و تهـدید دهـــــل
چیزکی مـــاند بدان نـاقـــور کـل
پس حکیمان گفـــته اندآین لحنها
از دوار چـــــرخ بگرفتیم مـــا
بانگ گردشهای چرخ است اینکه خلق
می سرایندش به طنبور و حـــلق
ما همه اجـــــزای آدم بـوده ایم
در بهشت آن لحنها بشـنوده ایم ...

مولانا، سماع د عاشقانو خواړه او خوراک ګڼي؛ او ښکلو ږغو ته د هغه ځواک په شان ګوري، چې د مینې او عشق اور تازه کيي:

«... پس غذای عاشقان آمد سماع
که در او باشـــد خـیال اجتماع
قـــوتی گیرد خـــیالات ضمیر
بلکه صـورت گردد از بانگ صـفیر
آتش عشـــق از نواهـــا گشت تیـز
آن چنانکه آتش آن جوز ریـــــز» [18]

شیخ سعدي علیه رحمه (۶۰۶ هـ ق ته نیژدې زیږېدلئ؛ او د ۶۹۱ - ۶۹۵ هـ ق تر منځ مړ) جهان داسې دریاب بولي، چې مینه او مستي څپې پکښې وهي. دی هم د ځینو نورو عرفاني اندېښمندانو په څېر، په سماع او غِناء کښې د اروېدوّنکي (سامع) پر فکري او عرفاني څرنګوالي ډېر ټینګار کيي. د ده په نظر، سماع داسې مستي او جذبه ده، چې د حال څښتن د جبروت او لاهوت و اسمانو ته پورته کيي؛ خو د بې حاله انسان په زړه کښې د نوس او هوا ښامار را ژوندی کيي. له دې خاطره نو د سماع او وجد اِباحت مستقیماً د اروېدوّنکي له حاله سره تړي:

«نگویم سماع ای برادر که چیست
مـــگر مســـتمع را بدانم که کیست
گر از برج مـــعنی برد طـــــیر او
فرشته فرو مـــــانـــد از سیـر او
و گر مرد لهو است و بـــــازی ولاغ
قویتر شود دیوش انـــدر دمـــــاغ
پریشان شـــود گل به بـاد ســحر
نه هـــــیزم که نشکافدش جز تــبر
جهان پُر ســـماع است و مستی و شور
ولیکن چـــــه بیند در آیینه کـور
نبینی شـــتر بر ســــماع عـرب
که چونش به رقص اندر آرد طــــرب
شتر را چو شور و طرب در ســـر است
اگر آدمی را نباشد خـــر است» [19]

مفکر عارف او خوږ ژبی شاعر- شیخ سعدی (رح) وروسته د حق تعالی په مینه کښې د بېهوښه مجذوبانو د وجد او نڅا فلسفه داسې بیانیي:

« ندانی که شـــوریده حالان مست
چـــرا بر فـــشانند در رقص دست
گشـــاید دری بـــر دل از واردات
فشـــانند ســـر دست بر کائنات
حـــلالش بود رقـص بر یـاد دوست
که هر آستینش جانی دروست» [20]

د ځینو تصوّفي او عرفاني شیخانو په عقیده، د سماع په غوَنډوّ کښې ګډوّن، یوازې د رسېدلي یا کامل عارف کار دئ؛ ځکه نو د

عرفاني طريقت و نوو سالکانو ته په دغه راز مجلسو کښې برخه اخيستنه، ګټوره او مناسبه نه ګڼي. ځينو نورو عرفاني مشرانو بيا هر چا ته د سماع د جواز حُکم کړی دی؛ خو د عامو، خاصو او خاص الخاصو دپاره يې د سماع د جلا جلا ډولو او شکلو په اړه خبري کړي دي. ځينو نورو د نسبتاً ورته نظر په لرلو سره، د طبيعي سماع، هوايي سماع، شهواني سماع او بدعتي سماع څلور ډولونه بيان کړي دي(۲۱).

وتلي عرفاني مفکر – شيخ عزيزالدين بن محمد نسفي (۶۳۰ – ۷۰۰ هـ ق) د مناسبو خوړو او معتدلي هوا تر څنګ، د ښه اواز اروېدل، د هغو درويشانو د رغېدو او قوَت يوه لار بولي، چي د پرله پسې رياضتو او مجاهدو په وجه کمزوري سوي يي. شيخ نسفي هم د ځينو عرفاني مخکښانو له عقيدو او نظريو سره سم، سماع د هر چا له شان او مقام سره مناسب کار نه ګڼي. هغه، په خپل لوړ عرفاني شهکار «انسان الکامل» کښې ليکي: «دا چي عام و خاص ټول په ګډه سماع کيي، دا نه د درويشانو کار دی او نه د مشايخو. درويشان او عارفان بايد داسي سماع ته ولاړ نسي. شيخ نسفي هم د امام غزالي په شان باور لري، چي درويشان بايد په سماع کښې د زمان، مکان او اِخوان شرطونه په پام کښې وساتي، چي په دې توګه کار تل د مشايخو له دودو او دستورو سره سم وسي... »(۲۲).

عرفاني مخکښانو د سپېڅلي قرآن د فاطر د سورې په لومړي ايات (۳۵: ۱) کښې د «يَزِيدُ فِي الخَلقِ مَا يَشَاءُ» مخسد ښه اواز تفسير کړی دی. د هغې (هغوی) د دلايلو له مخي، په عظيم الشان قرآن کښې د الله تعالی دا مبارک اِرشاد، چي په ږغو کښې د خره ږغ تر ټولو بد دی، هم په واقعيت کښې د ښه او ښايسته اواز پر ستاينه دلالت کيي. دغه راز، په يوه نبوي حديث کښې د الله تعالی له خوا د ښه اواز د پيداکولو او ستايني په اړه داسي راغلي دي: «مَا بَعَثَ اللّهُ نَبِيًّا إلا حَسَنَ الوَجهِ حَسَنَ الصَّوتِ ...» د دې مسألې په اړه، په يوه بل نبوي حديث کښې راغلي، چي رسول اکرم (ص) د داود (ع) و ښکلي اواز ته په اشارې سره، د ابی موسا اشعري د اواز په ستاينه کښې و ويل: «ده ته يې د داؤد (ع) د کورنۍ ښه اواز ور کړی دی»(۲۳).

د سماع او غِناء پلويانو پر ځينو قرآني اياتو (چي يادوَنه او تفسير يې د دې لنډې ليکني او څېړني په جاغوږ کښې نه ځايېږي) سربېره و داسي نبوي احاديثو ته هم اشاره کړې ده، چي د هغو له مخي، غِناء د اسلامي نصوصو له پلوه لهو و لعب نه ګڼل کيږي؛ د مثال په توګه د صحاحو مؤلفانو (امام بخاري او امام مسلم) له بي بي عايشې (رضی الله عنها) څخه روايت کړی دی، چي يوه روځ حبشو (د اوسنۍ ايتوپيا خلګو) د ماجت/ جومات په انګړ يا غولي کښې لوبې کولې، رسول الله (ص) و بي بي عايشې ته و ويل: غواړې چي ويې ګورې؟! بي بي عايشې ورته و ويل: هو. هغه مبارک پر دروازه و درېدی، لاس يې وړاندي کړ؛ ما [بي بي عايشې] خپله زنه پر کښېښوله او دوَنه ننداره مي وکړه، چي په خپله خوښه او قانع سوم(۲۴). له دې مبارک حديث څخه دا ټکي په ډاګه کيږي:

- لوبي، ساتيرى او د هغو نندارە هيڅکله حرام نه دي؛ ځکه پيغمبر (ص) کله بي بي عايشه (رضى الله عنها) و حرام کار ته ور بلله.
- د حبشو په لوبو کښي نځاوي او ترانې هم وې.
- هغې دا لوبي يا بازۍ د ماجت/ جومات په غولي کښي کولې.
- پيغمر (ص) په خپله و بي بي عايشې (رضى الله عنها) ته د لوبو د نندارې بلنه ورکړه.
- په داسي حال کښي، چي حضرت محمد (ص) په خپله د نندارې او ساتيري سړی نه ؤ؛ خو له بي بي عايشې سره يې تر اوږده مهاله د لوبو ننداره وکړه. له دې ټولو دلايلو څخه دا نتيجه تر لاسه کيږي، چي د ښځو او کوچنيانو د خوښۍ دپاره، داسي بازۍ او ننداري د نېکو خويو او اخلاقو مانا لري[۲۵].
سربېره پر دې د «صحيح بخاري» په دوهم ټوک کښي د «کتاب العيدين» تر سرليک لاندي، له بي بي عايشې (رضى الله عنها) څخه د حضرت محمد (ص) دوه نور مبارک حديثونه (اوايم او دو اوايم حديث) هم روايت سوي دي، چي دواړه يې په نسبتاً ښېلو عبارتو او جوملو، د اختر په روځو کښي، د بي بي عايشې او رسول اکرم (ص) په خپل کور کښي د سندرو او ساز و سرود د مراسمو جزييات بيانيي. د بي بي عايشې (رضى الله عنها) په دې روايت سؤو احاديثو کښي، له ورايه ويل سوي دي، چي حضرت پيغمبر (ص) د حضرت ابوبکر صديق (رض) پر احتجاج او اعتراض سربېره، د اختر د خوښۍ او تَبَرُک په خاطر، د بي بي عايشې په کور کښي د سندرو او ساز و سرود له مراسمو سره مخالفت نه ؤ کړئ. عجبه خو لا دا چي د بي بي عايشې په کور کښي دوو انصاري نجونو په خپلو سندرو کښي د مسلمانانو د غزا او شهادت شعرونه نه، بلکي د «بُعاث» غزلي ويلې، چي په هغو کښي تر اسلام دمخه د انصارو د دوو مشهوّرو قبيلو، اَوس او خضرج، تر منځ د جنگ نکلونه بيان سوي وه[۳۶].
پر دې ټولو دلايلو او قراينو سربېره، د اسلامي تصوّف او عرفان ځينو پېشوايانو او مرشدانو، په خپلو عرفاني اصولو او سير و سلوک کښي د سماع او وجد له ملاتړه نټه کړې ده. وتلی عرفاني لارښود - شېخ هجويري (په ۴۶۵ هـ ق کښي مړ) په خپل نامتو اثر «کشف المحجوب» کښي په دې اړه داسي ليکي: «په شريعت او طريقت کښي نځا هيڅ اصل او بنسټ نه لري»[۲۷]. د ده په نېز (نزد)، وجد او نځا له شرعي او عقلي اړخه ناوړه کار دئ. نېک خلگ هيڅکله و داسي کار ته زړه نه ښه کيي. د نقشبندي طريقې لارښود- خواجه بهاء الدين نقشبندي بخاري (۷۱۸- ۷۹۱ هـ ق) هم له هغو منلو صوفي لارښوونکو څخه دئ، چي په خپل عرفاني طريقت کښي له سماع او وجد سره هوکړه نه لري. هغه وايي: «نه دا کار کوم؛ او نه ځني مُنکر يم»[۲۸]. ځينو نورو صوفيانو او عارفانو د سماع او خوښۍ په غوَنډو کښي د قرآن مجيد د اياتو د تلاوت يادوَنه او سپارښتنه کړې ده. د دې عرفاني ډلي په نظر، سالکان بايد د قرآني کلام په تلاوت سره د زړه مينه ماته کي، نه د

شعرو او ترانو په ویلو یا لږ تر لږه هغؤ شعرو او ترانو په ویلو سره، چې د دیني مسألو، جنت او دوږخ، الهي اذکارؤ او د اولیاؤؤ د ویناؤؤ یادونه نه یې پکښې راغلي.

**د اسلامي عارفانؤ د هغؤ دلایلؤ غټ ټکي، چې له مخې یې د عظیم الشان قرآن پر ځای په سندرؤ او ترانو سماع کول روا ګڼل کیږي؛ او د سماع و غوږنیو ته د قاري پر ځای د سندرغاړي بلنه جایزه بولي:**

– د قرآن کریم ټول ایاتونه د اروېدؤنکؤ له حالت سره سمؤن نه لري؛ ځکه په ځینؤ ایاتو کښې د طلاق، میراث، حدؤدؤ او داسې نورؤ موضوعاتؤ په څېر مسألې بیان سوي دي، چې د الهي مینې اور نه تازه کیي؛ مګر دا چې څوک د مینې او عشق و داسې مقام ته رسېدلئ یې، چې له هر شي څخه سماع واروي.

– د ډېر ویلؤ په وجه د هر شي اغېزه کمه او کرار کرار نست کیږي. د قرآن شریف تلاوت هم په پیل کښې ډېره اغېزه لري، خو کله چې ډېر تکرار سي، اغېزه یې پر پخواني حال نه پاتیږي. د عارفانؤ په نېز د دې ستونزې د ایسته کولؤ دپاره کېدای سي، نوي نوي سندرې او ترانې و ویل سي، خو سپېڅلی قرآن هره پلا په نوې نوې بڼه نسي تلاوت کېدای. کله چې به د رسول علیه صلات و سلام په زمانه کښې عربانؤ واردواره د قرآن مجید ایاتؤنه آروېدل، د هغو د روحاني بدل او اغېزې په وجه بې (به یې) تر سترګؤ اؤښکې بهېدې؛ او په وجؤد کښې بې د سپېڅلې مینې او اخلاص خاص حال او مجال پیدا کېدئ. حضرت ابوبکر صدیق (رض) به هغی ته ویل: «کناکما کنتم تم قست قلوبنا» یاني مؤږ هم اول ستاسې په شان ؤ؛ خو اوس مو زړؤنه سخت سول.

– موزؤن کلام پر زړؤنؤ ډېره اغېزه ښندي. له دې کبله په قرآن ډېره لږ سماع کیږي؛ ځکه چې قرآن له اواز سره نسي ګډېدلای. په شعر کښې تصرف او لاسوهنه روا ده، خؤ په قرآن مجیدکښې هیڅ ډؤل تصرف نسي کېدای.

– د رغ د ډېرې اغېزمنتیا دپاره د شپېلۍ، ډول، طبلې، دریې او نورؤ موسیقي آلاتؤ له خوږو ږغو څخه کار اخیستل کیږي. د موسیقۍ د آلاتؤ ږغؤل د ساتېرې او شوخۍ کار دئ؛ حال دا چې قرآن د خدای تعالی د سپېڅلي کلام په توګه، په هیڅ ډؤل او هیڅ بڼه د شوخۍ، ساتېرې او مسخرو وړ نه دئ.

– هر څوک ځانته خاص روحي او عاطفي حالت لري؛ له دې اسیته نو هیله لري، چې له خپل حال او څرنګوالي سره سم بیتؤنه یا شعرؤنه واروي. کولای سي د خپل ذؤق او شؤق له مخې د شاعرانؤ په شعرو کښې څه نا څه خوښ او چاڼ کي؛ خؤ د قرآن کریم له ایاتو سره هیڅکله څوک داسې سلیقه یې او التقاطي چلند نسي کولای[۲۹].

یادونه:

د دې برخې لمن لیکونه د دوهمې برخې په پای کې وګورئ!

نور بیا...



ليکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# دوه مکرونه

بسم الله الرحمن الرحيم ـ افغانستان ته د اسلام سپېڅلی دين لومړی د دوهم خليفه حضرت عمر (رض) د امارت پر مهال راورسېد. د اسلام دغه نوراني څپې له درو خواوو راغلي دي چې هغه شمال، لوېديځ او جنوب ختيځ دي. د شمال د جبهې مرکز د خلفای راشدينو پر مهال نيشاپور وو، خو د امويانو پر مهال مرو وو. د لوېديځې جبهې مرکز د سيستان د زرنج ښار وو او د جنوب ختيځ محاذ چې بلوچستان او کښتنی سِند وو، ټاکلی مرکز نه درلود (افغانستان درمسير تاريخ ـ ۷۱او ۷۲ مخونه).

دا ټولې سيمې څو څو واره لاس پر لاس سوي دي، خو په هره نيونه کې ګڼ شمېر افغانان مسلمانېدل او په دې ډول تدريجاً د کافرانو شمېر لږېدی او د مسلمانانو تعداد ډېرېدی څو چې تر دوو سوو کالو وروسته زموږ نيکه ګان ټوله «تسليم» يعني په اسلام مشرف سول. بايد ووايو چې په دې دوو پېړيو کې تر پنځوسو زرو زياتو مسلمانانو خپلې ککرۍ هم بايللي او شهيدان سوي دي. يعني افغانانو په ډېره ګرانه بيه اسلام قبول کړی دئ، چې په ټوله سيمه کې بل هيواد دومره مشقت او مصيبت نه خو ګاللی دئ او نه ئې ترپلی دئ.

په هر صورت، د افغانستان بېلابېلې سيمې به عربو (يعني مسلمانانو) فتح کولې

خو ځايي افغانانو په ځو مياشتي يا ځو کاله وروسته بيرته نيولې. دا مبارزه، مجادله او جګړه په ځينو برخو کي آن دوې پيړۍ روانه وه.

دربيم خليفه حضرت عثمان (رض) په ۳۰ هجري (۶۵۰ ميلادي) کي ربيع بن زياد سيستان ته راولېږی او هغه دا ولايت ونيوی چي اوسېدونکي ئې زردشتيان ول. واکمن «ايران بن روستم» تسليم سو. خو دوه کاله وروسته چي ربيع ولاړی نو هغوی بيا بښورش وکړ او ټول مسلمانان ئې وشړل.

دا وار خليفه مشهور صحابي عبدالرحمن بن سمُره (رض) راولېږی چي د هغه سره يو شمېر فقهاء او علماء هم ملګري ول. هغوی په سيستان کي خلکو ته د اسلام دين ورپېژندی نو ځکه جوپه جوپه زردشتيان مسلمانان کېدل. آن دا چي اکثره دغه علماء د تل له پاره په سيستان کي پاته سول او د اسلام انقلابي افکار ئې خپرول (افغانستان در مسير تاريخ ـ ۶۹مخ).

د سيستان ساتندوی يو ځل بيا اطاعت ومانه او اسلامي علماوو خپل ديني تبليغ ته زور ورکړ خو هلته نابېره خليفه شهيد سو (۳۵ هجري). عبدالرحمن ژر بصرې ته ولاړی، خو د سيستان خلکو بيا د موقع ځخه ګټه واخيسته او سيستان ئې په خپل کنټرول کي راوست (د افغانستان لنډ تاريخ ـ ۲۰۲مخ).

د حضرت عثمان (رض) تر شهيد کېدو وروسته حضرت علی (رض) خليفه سو خو معاويه مخالفت ورسره وکړ چي له امله ئې مسلمانان په خپل منځي جنګ اخته سول.

اسلامي فتوحات ودرېدل، مفتوحه حاکمان راپورته سول او پر عربو ئې حملې پيل کړې او په دې ډول ګټلي سوبې پيکه سوې (پښتانه د تاريخ په رڼا کي: ۲۴۰مخ).

عبدالرحمن بن سمُره (رض) بيا راولېږل سو او هغه د خپلو تجربو او مانورو پر اساس سيستان بيا ونيوی او د ارغنداو د ناوې له لاري پر مخ ولاړ. زابل او غزني ئې ونيول او کابل ته ورسېدی. هلته کابل شاه پخپله جګړې ته راووت ځو چي د خپل لوی پوځ سره مات او تسليم سو. خو نابېره يو بل غم پېښ سو يعني دا چي حضرت علي (رض) شهيد سو (۴۰ هجري). ګټلي سوبي او فتحي بيا پيکه او ميده سوې. کله چي معاويه په دمشق کي واکمن سو نو د افغانستان د جګړو بڼه هم ورسره بدله سوه (د افغانستان لنډ تاريخ ـ ۲۰۴ مخ).

معاويه شل کاله واکمن وو او تر ډېره حده ئې داخلي مخالفتونه آرام کړل. هغه په ۴۳ هجري (يا ۶۶۳ ميلادي) کي عبدالرحمن بن سمُره د يو پياوړي پوځ سره يو ځل بيا افغانستان ته راولېږی. ابن سمُره په يو کال کي د دې ټولې سيمې ناآرامي آرامي کړې. بيا ئې بُست، کش (کشکي نخود)، داور (زمين داور)، رخج (اراخوزيا، د ارغنداو ناوه يا کندهار) ونيول. وروسته زابلستان او کابلستان ته پسي ورغی او په ۴۴ هجري کي ئې دا وطنونه هم ټوله ونيول (د افغانستان لنډ تاريخ: ۲۰۸ مخ). د کابلشاه او ابن سمره تر منځ سوله وسوه او دی بيرته سيستان ته راغی او ځوان قوماندان مهلب بن ابي صخره ئې د

گندهارا خوا ته سوق کړ چې هغه هم هلته ډېرې سوبې وکړې (پښتانه د تاريخ په رڼا کې: ۲۴۵ مخ). ابن سمُره تقريباً درې کاله په افغانستان کې چارې کنټرولولې څو چې په ۵۰ هجري کې په بصره کې وفات سو.

معاويه وروسته ربيع حارثي د سيستان حاکم وټاکی. هغه ډېره هڅه وکړه چې زردشتيان د اسلام دين ته راواړوي او قرآنکريم ورزده کړي چې تر ډېره حده مؤفق هم سو.

د کابلستان رتبيل په ۴۸ هجري کې د مسلمانانو د خپل منځي اختلافاتو او هم د لوی اسلامي پوځ د ستړي برخې د بيرته وتلو څخه استفاده وکړه. نو يو لوی پوځ ئې سرښته کړ او کندهار ته راغی. خو ربيع حارثي په رخد (اوسني کندهار) کې برید پر وکړ مگر ناکام سو او بيرته پر شا ولاړ. بل عرب قوماندان عبيدالله بن ابي بکره زرنج ته راغی او رتبيل ئې مات کړ څو چې هغه سولې او تسليمی ته اړوت. رتبيل بصرې ته ورغی (يا ولېږل سو) او هلته ئې د «ربيع بن زياد» سره خبرې اترې وکړې چې د خراسان لوی آمر او د دوی پخوانی ماتونکی وو (د افغانستان تاريخ: ۶۳ مخ).

په هر صورت، د معاويه تر مړيني وروسته د هغه زوی يزيد واکمن سو او هغه سيستان ته يزيد بن زياد راولېږی. دا مهال د کابل خلکو بښوربښ وکړ او سپهه سالار ابو عبيده بن زياد ئې ونيوی. يزيد بن زياد هم پر هغوی يرغل وکړ خو ووژل سو او مسلمانانو سخته ماته وميندله. بل قوماندان «طلحة الطلحات» وټاکل سو او هغه ابو عبيده د کابلشاه څخه په پنځه لکه (۵۰۰۰۰۰) درهمو رانيوی او سيستان ته ئې راوست څو چې له غمه ناجوړه او په ۶۲ هجري کې مړ سو او همدلته ئې ښخ کړ. په ۶۳ کې د تازي سردارانو تر منځ اختلاف پېښ سو او هر يوه د سيستان يوه يوه برخه په واک کې لرله. رتبيل له دې اختلافه گټه واخيسته، حمله ئې وکړه او د سيستان مرکز يعني زرنج ئې بيا ونيوی (افغانستان بعد از اسلام: ۱۹۸ مخ).

عبدالله بن زبير (رض) په ۶۴ هجري کې عبدالعزيز بن عبدالله بن عامر د سيستان حاکم کړ چې هغه زرنج بيرته د رتبيل څخه ونيوی او رتبيل په دې شديد جنگ کې د «ابو عفرأ عمير مازني» په لاس ووژل سو او پوځ ئې شکست وخوړ (هماغه: ۱۹۹ مخ). عبدالعزيز تر ۷۲ هجري پورې د سيستان حاکم وو چې اسلام ئې ډېر خپور کړ. بيا په ۷۳ کې حضرت عبدالله بن زبير (رض) د عبدالملک بن مروان له خوا شهيد سو او هغه حجاج بن يوسف ثقفي، چې ډېر ظالم او سخت زړی انسان وو، د عراق او خراسان لوی آمر وټاکی. حجاج هم اميه بن عبدالله د سيستان حاکم کړ او هغه خپل زوی عبدالله بن اميه سيستان ته راولېږی. هغه په ۷۴ هجري کې سيستان ته راورسېد او بې له ځنډه ئې د رتبيل سره د جنگ اعلان وکړ (رتبيلان يوه شاهي سلسله وه او همدا ئې لقب وو خو پاچهان به ئې بېل بېل واکمنېدل چې هر يوه ته به ئې رتبيل وايه). رتبيل هم له مجبوريته سولې ته حاضر سو او يو ميليون درهمه ئې ومنل او درې لکه درهمه ئې شخصاً عبدالله بن اميه ته ورکړل او

روغه وسوه. حجاج په ۷۸ هجري کی عبیدالله بن ابی بکره د سیستان حاکم کړ.

رتبیل د عربو له مخالفتونو څخه ډېره ګټه اخیسته او هر ځل به ئې حملې او انتقام ته لاس اچاوه. عبیدالله بن ابي بکره د یو لوی پوځ سره راغی او د حجاج څخه ئې امر اخیستی وو چې پر رتبیل به شدیده حمله کوي. خو رتبیل هم ښه خبر او چمتو وو. سخت جنګ پیل سو چې په ترڅ کې ئې دوه غښتلي او مشهور قوماندانان (شریح الحارثي او عبدالله بن عباس) شهیدان سول. جګړه اوږده سوه او د مسلمانانو پوځیان ډېر وږي او تږي ول. کله چې ډوډۍ تهیه او هغوی ته ورکړه سوه نو خورا ډېره ئې وخوړل چې له کبله ئې مړه سول. لږ پوځیان چې پاته سول، نو هغوی ته ئې لومړی غوړي ورکړل او بیا ئې په کراره کراره ډوډۍ خوړلو ته وبلل. په دې ډول د دې لوی پوځ ستره برخه له منځه ولاړه، یا ووژل سول او یا هم مړه سول. نو ځکه عربو دغه پوځ «جیش الفنا» یعنی پوپناه سوی پوځ وباله (تاریخ سیستان: ۱۱۱ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۰ مخ؛ د افغانستان تاریخ: ۶۷ مخ).

حجاج نور هم وخښمېد او عبیدالله ئې په ۷۸ هجري کې سیستان ته راولېږی. رتبیل هم مخته راغی او په بُست کې سخته جګړه پېښه سوه. رتبیل کرار کرار شاتګ کاوه او د عبیدالله پوځونو تعقیباوه څو چې کابل ته نږدې سول او د عبیدالله پوځ ئې د غرونو درو ته ننه ایست او محاصره ئې کړ. عبیدالله مجبور سو چې اووه لکه درهمه رتبیل ته ورکړي. دا لا څه، د هغه دا شرط ئې هم له مجبوریته ومانه چې خپل درې زامن (نهار، حجاج او ابي بکره) به د یرغملو په توګه رتبیل ته ورلېږي تر څو بیا د رتبیل سره جنګ و نه کړي. عبیدالله بله چاره نه لرله او همداسې ئې وکړل، او په دې ډول ئې خپل پوځیان راخلاص کړل څو چې د بُست په دښت کې له لوږې او تندې څخه مړه سول. پخپله عبیدالله دومره غمجن سو چې د غوږ د درد له امله په ۷۹ هجري کې مړ سو او په همدې بُست کې خاورو ته وسپارل سو (افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۱ مخ).

ښه، تر دې ځایه خو مو افغانستان ته د اسلام د مقدس دین راتګ (هغه هم صرف د یوې جبهې له خوا) مختصراً وڅېړی. اوس به د پورتنیو مقابلو او مجادلو، پرشاتګونو او پرمختګونو، مشقتونو او مصیبتونو، لوړتیاوو او ځوړتیاوو ګرده ټکي سره وصل کړو او اصلی موضوع ته به ننوزو.

## لومړی مکر

د عراق او خراسان د زون عمومي آمر حجاج بن یوسف د رتبیل له خوا د عبیدالله د لوی پوځ ناکامۍ او تباهۍ ډېر ودرداوه. هغه خلیفه عبدالملک ته اطلاع ورکړه چې که دې وطن ته غښتلي او زیات شمېر پوځیان را و نه لېږل سي نو رتبیل او ملګري به ئې سختې ضربې راکړي. کله چې د حجاج دا لیک اموي دربار ته ورسېد، عبدالملک ئې په ځواب کې داسې ولیکل: «خط دې راورسېدی او د هغه څه څخه خبر سوم چې مسلمانانو ته په سیستان کې ورپېښ سول. هغه کسان چې له

منځه ولاړل اجر ئې په الله اړه لري. خو هغه ټاټوبي ته د لوی پوځ لېږل چې مسلمانان د دې برخلیک سره پکښې مخامخ سول، زما رایه دا ده چې ځنګه ستا خوښه وي او مؤفق اوسې» (افغانستان بعد از اسلام: ۵۱ مخ).

حجاج د واکمن په رضائیت پوه سو. نو هغه وو چې په ۸۰ هجري کې ئې د بصرې او کوفې د یو لک او شل زره (۱۲۰۰۰۰) کسیز پوځ څخه لس زره چُنلی سپور پوځ تیار کړ. په عصري وسلو، عالي روزنه او ښت زیات مصرف سره ئې اکمال او وسله وال کړ چې کېدای سي د نن ورځې «کوماندویي او سپېشل فورس» ئې وبولو. له همدې امله دغه پوځ «جیش الطواویس» وبلل سو یعني د طاوس په رقم چنلی، انتخابي، مجهز او ښایسته پوځ. ویل کېږي چې په دې پوځ دوه ملیونه درهمه مصرف سول چې ساری نه لري (تاریخ سیستان: ۱۱۲ مخ).

د حیرانتیا او تأسف ځای خو دا دئ چې حجاج خپل یو ډېر لوی سیال او مخالف د دې پیاوړي پوځ قوماندان کړ چې هغه عبدالرحمن بن محمد بن اشعث و! حجاج هغه ته په ټول عراق کې په خورا نفرت سره کتل او تل به ئې غوښته چې په یو چل او مِکر سره ئې ووژني خو نه ئې سو کولای. روایت دئ چې عبدالرحمن یوه ورځ د حجاج سره په یوه غونډه کې مخامخ سو چې حجاج ئې په باره کې داسي وویل: «د دې سړي کړنه وګورئ، په خدای قسم که ځواک پیدا کړم نو غاړه به ئې غوڅه پرې کړم» (افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۲ مخ).

په هر صورت، حجاج افغانستان ته د عبدالرحمن د رالېږلو څخه څو مهم هدفونه لرل:

لومړی ـ تر څو خپل دغه سیال او رقیب د عراق څخه لیری کړي.

دوهم ـ تر څو خان د واکمن (عبدالملک) په سترګو کي مهم وګرځوي او په دې ډول ښه نوم او ډېر صلاحیت وګټي.

دریم ـ تر څو عبدالرحمن په افغانستان کي د رتبیل سره جګړې ته ولېږي چې په کامیابۍ او ناکامۍ دواړو کي ئې ګټه حاصلوله: که بریمن سي نو پخپله د هغه او رتبیل د مابعده جنګونو څخه به بېغمه سي؛ او که مات سي نو د یو دښمن په لاس به د بل دښمن سر پرې سوی وی (هماغه).

هو، د عبدالرحمن په قومانده د طاوسانو دغه تکړه او مجهز پوځ په ۸۰ هجري کي سیستان ته راورسېد. خو متأسفانه دلته د سیستاني کافرانو څخه علاوه ګڼ شمېر خوارج هم اوسېدل چې د معاویه د سلطنت سخت مخالفان ول او څو څو واره ئې وینړۍ جګړې هم ورسره کړي وې (دوی مسلمانان او د امویانو سخت مخالف ول چې د خراسان د مختلفو برخو څخه دلته راغلي او میشته سوي ول. دوی چې به د امویانو پر ضد راووتل یعني خارج به سول نو وروسته خارجیان یا خوارج وبلل سول). متأسفانه د عبدالرحمن لومړنۍ مقابله د همدې خوارجو سره وسوه چې مشر ئې همیان بن عدی سدوسي وو. د دواړو خواوو ډېر جنګیالي ووژل سول څو چې عبدالرحمن بریمن سو. ده وروسته په زرنج کي خپل

پوځونه له سره منظم کړل او د سیستان په منبرونو کې ئې په احساساتي ویناوو سره مسلمانان د رتبیل او کفارو له خطره پوه کول (هماغه: ۲۰۳ مخ). خو د دې هر څه سره سره د ده غښتلی کوماندویي پوځ ډېر وسولېد، مستهلک او کمزوره سو.

خیر، کله چې رتبیل خبر سو ژر ئې خپل استاځی د عبدالرحمن حضور ته واستاوه، ورته وېې ویل چې تېر هېر کړه. په بدل کې به د ټولي مالیې درکولو ته تیار یم. خو عبدالرحمن دا وړاندیز رد کړ او مخ پر بُست راوخوځېد (د افغانستان تاریخ: ۶۷ مخ).

رتبیل هماغه پخوانی تاکتیک چې د عبیدالله په مقابل کې کارولی وو، بیا پلې کړ یعني کرار کرار پر شاتګ او په ځان پسې تنګو درو ته ننه ایستل او هلته محاصره کول او تسلیمول. خو عبدالرحمن دا تخنیکونه درک کړي ول نو ځکه ئې د پرمختګ پر مهال شا ته امنیتی پوستې اچولې تر څو د اصلي پوځ سره نېغ ارتباط موجود وي. خو هغه د دې سره سره دا لویه اشتباه وکړه چې د ژمي تر رارسېدو مخکې ئې رتبیل مات او کابل فتح نه کړای سو. ده تر کابل پوري د ټولو سیمو د نیولو خبر حجاج ته ولېږی او ضمناً ئې هغه متوجه کړ چې له یوې خوا سوړ ژمی را روان دئ او له بلی خوا په دې غرونو او کوتلونو کې پرمختګ ستونزمن دئ، نو موږ به د راتلونکي کال په پسرلي کې پر کابلشاه برید کوو. دا ځکه چې د عربو آسونه په هوارو دښتو کې پیاوړي ول، خو په غرونو کې د ګرځېدو راګرځېدو وړ نه ول.

حجاج د عبدالرحمن دغه عسکري پلان غلط او ناوړه وباله او د برید ځنډول ئې د عبدالرحمن لټي او هوسا طلبي وبلله او هغه ئې د یو ړوند انسان سره تشبیه کړ.

د حجاج دغه توندي او بدکلامي د عبدالرحمن، چې یو دروند او مجاهد شخص وو، قهر راوپاروه. خو حجاج دوهم لیک ورته راولېږی او د چټک یرغل امر ئې کړی وو. دا لا څه، د هغه درېیم خط پسې راورسېد او اخطار ئې ورکړی وو چې که خپله درسپارلې دنده اجرا نه کړې نو ژر به معزول او له دندې وشړل سې.

عبدالرحمن د حجاج دغه ټول لیکونه د خپلي اردو مخې ته کښېښوول او داسې ئې ورته وویل: «حجاج امر راته کوي چې د دښمن پر خوا ور ودانګم. لاکن دا یو داسې وطن دئ چې پرون ستاسې ورونه پکښې تباه او برباد سوي دي. نو ځکه نه غواړم چې د حجاج دا امر پر ځای کړم».

عبدالرحمن د ټولو افسرانو او عسکرو څخه مشوره وغوښته. د عسکرو په منځ کې ډېر شور او زوږ جوړ سو او یو سردار، چې ابو طفیل عامر بن واثله نومېدی، پاځېد او ډېره احساساتي وینا ئې وکړه. ورپسې بل قوماندان عبدالمومن ربعي توند وینا وکړه او د لښکر څخه ئې وغوښته چې عبدالرحمن ته بیعت وکړي او حجاج پسې واخلي. ټول لښکر همداسې وکړل څو چې عبدالرحمن وروسته د کابلشاه (رتبیل) سره وړغږېد. ده د هغه سره په دې شرط سوله وکړه چې که پر حجاج بریمن سم نو هیڅکله به ستا څخه باج (ججه) او

مالیه و نه غوارم، خو که مات سم نو ته به پناه راکوې. رتبیل ورسره ومنله او ترون لاسلیک سو. نو هغه وو چې عبدالرحمن مخ پر عراق ورغی.

په ۸۲ هجري کې په بصره کې د حجاج سره وجنګېد خو د واکمن عبدالملک له خوا د حجاج سره د پوځي مرستي په زور عبدالرحمن مات سو ځو چې د ترون له مخي ئې رتبیل ته پناه یووړه (د افغانستان تاریخ: ۶۹ ـ ۷۱ مخونه؛ پښتانه د تاریخ په رڼا کې: ۲۵۷ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۵ـ۲۰۶ مخونه).

حجاج د خپل استاځي (عماره بن تمیم) په واسطه د رتبیل سره رابطه وکړه او ورته وېې ویل چې که عبدالرحمن راوسپارې نو عرب به په زابلستان او کابلستان کې مداخله نه کوي. عماره بن تمیم په ژبه ډېر تکړه او هم ځیرک انسان وو او په رتبیل ئې د عبدالرحمن د ورتسلیمولو خبره ومنله. خو عجیبه تصادف پېښ سو او هغه دا چې عبدالرحمن دا وخت د سِل (نري رنځ) په ناروغۍ مبتلا وو چې له امله ئې وفات سو (۸۵ هجري). خو د یو بل روایت له مخي هغه ځان د غره څخه راوغورځاوه او د پیره دار سره یو ځای ووژل سو. ځکه، په کوم ځنځیر چې عبدالرحمن تړلی وو، د هغه سړي په ملا پوري تړلی وو. رتبیل د عبدالرحمن څخه په مړیني سر پرې کړ او حجاج ته ئې ولېږی (پښتانه د تاریخ په رڼا کې: ۲۵۸ مخ).

رتبیل خو دا وو (په بل روایت د نهو) کالو له پاره د خلافت د مالیي او ججي څخه معاف سو او تر دې مهمه لا دا چې د همدومره کلونو له پاره د مسلمانانو د حملو څخه وژغورل سو. خو هغه بیا هم یو افغان وو، غیرتي وو، زړه ور او د کلک عزم څښتن وو نو شایي پر خپله دغه بې وفایي او شرمناکه مکر به وجداناً خپه وو. خو خپل مقام، خپل هیواد او خپل ملت ډېر پر ګران وو او د دې ګټو له پاره ئې هر ډول عمل کاوه!

هو، دا هغه ظالمانه جفا او بې لوظي وه چې رتبیل (کابلشاه) د هغسي یو غیرتي او مدبر سپهه سالار سره وکړه چې تینګه ژمنه، قول او قسم ئې ورسره کړی وو.

### دوهم مکر

د خدای شپې ورځي دي. ځو لسیزي آن ځو سلیزي تېري سوې. هماغه رتبیلان او کابلشاهان د هماغه عربو او مسلمانانو تر حملو او بریدونو لاندي ول. دوی به مدافعه کول خو هغوی به نیول. د دې نیولو او ځپلو په بهیر کې ۱۸۰ کاله وروسته نوبت صفاریانو ته ورسېد. یعني د امویانو تر (۹۰) کلونو ضربو وروسته د عباسیانو واکمني د ځه باندي ۵۰۰ کالو له پاره مسلطه وه، خو د هغې په بطن کې دلته محلي سلطنتونه هم رامنځته سول چې د عباسیانو څخه مستقل ول لکه طاهریان، سامانیان، صفاریان او غزنویان.

د صفاریانو د کورنۍ مؤسس یعقوب اللیث په ۲۴۷ هجري (یا ۸۶۱ میلادي) کې واک ته ورسېدی چې پر ټول افغانستان او ورپورو سیمو باندي واکمن وو. د ده د واکمنۍ مرکز سیستان وو. یعقوب په رخد (یعني

کندهار) کې د رتبیل سره په سخت جنګ کې رتبیل د شپږو زرو جنګیالیو سره ووژی، دېرش زره ئې اسیر ونیول د څلورو زرو آسونو په شمول. د هغه ورور (احرسي ـ کذا) هم د خورا زیاتو وسلو او ولجو سره سیستان ته ولېږل سو (تاریخ سیستان: ۲۰۶ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۵۴ مخ). د همدې رتبیل د اکا زوی مسلمان سو چې صالح بن حجر ونومول سو او یعقوب د کندهار والي کړ، خو په ۲۵۲ هجري کې بیرته یاغي او باغي سو څو چې د والشتان په کلا کې محاصره سو او ځان ئې ووژه (تاریخ سیستان: ۲۰۷ مخ).

په هر صورت، یعقوب په ۲۵۷ هجري (یا ۸۷۰ میلادي) کې کابل فتح کړ (پښتانه: ۱۷۱ مخ). خو دا فتح ئې په چل او مکر حاصله کړه. محمد عوفي په خپل اثر «جوامع الحکایات» کې د یعقوب دغه مکرجن برید او یلغار داسي بیانوي:

«کله چې صالح نصر د ده له لاسه رتبیل ته پناه یووړه، نو امیرانو دی پر رتبیل باندي حملې او جهاد ته وپاراوه او ورته وېې ویل چې که څه هم د رتبیل په مقابل کې ستا پوځي طاقت کم دئ، ولي پر خدای توکل وکړه او د مکر او هنر څخه کار واخله. امید دئ چې پر دښمن به بریالی سې. نو یعقوب هم خپل ټول لښکر راغونډ کړ چې تر زرو کسو زیات نه وو او د رتبیل جنګ ته روان سو. کله چې بُست ته ورسېد نو د بست خلکو په یعقوب پوري ملنډې ووهلې او ویل به یې چې وګورئ د دومره معمولي پوځ سره د رتبیل مقابلې ته روان دئ.

نو هغه وو چې یعقوب هم د مکر او هنر څخه کار واخیست. خپل دوه اعتباري امیران ئې د استاځو په توګه د رتبیل دربار ته ولېږل. ده رتبیل ته پیغام ولېږی چې زه ستا په خدمت کې حاضرېدل غواړم، او دا مې اراده ده چې ستا له پاره لوی لوی خدمتونه وکړم. دا ما ته معلومه ده چې زه ستا د مقابلې وړ نه یم. خو که خپلو پوځیانو ته دا ووایم چې زه ستا خدمت ته در روان یم نو دوی به ښورښ او بغاوت وکړي او ما او زما ملګري به ووژني. نو ځکه زه دوی ته داسي وایم چې زه ستا (یعنی رتبیل) سره جنګ ته در روان یم. ولي کله چې زه هلته در ورسېږم نو دوی به بیا هرومرو زما ملګرتیا کوي.

د یعقوب استاځي چې رتبیل ته ورغلل او دا پیغام ئې ورتسلیم کړ نو هغه ډېر خوشحاله سو. ځکه چې هغه د یعقوب له لاسه ډېر تنګ او په عذاب وو. رتبیل د یعقوب استاځي ښه ونمانځل او یعقوب ته ئې د ډېرو انعامونو او ښېګنو د وعدو سره ولېږل.

بلخوا، یعقوب خپلو پوځیانو ته وویل چې دا استاځي مي د جاسوسۍ په غرض ورلېږلي دي. کله چې یعقوب د خپل لښکر سره رتبیل ته نږدې راورسېد نو رتبیل صالح نصر راوغوښت او ورته وېې ویل چې دښمن اوس دلته د سولې په غرض راغلی دئ نو موږ ته هم جنګ په کار نه دئ او د یعقوب د ملاقات تیاری ئې شروع کړ.

د رتبیل به دا قاعده وه چې پر آس به سپور سو نو د ده تخت به فراشانو پر اوږو سپور وړی. دلته هم همداسي وه او کله چې هغوی د

ده تخت پر اوږو اخیستی وو او صفونه جوړ سول نو رتبیل پر تخت کښېناست او د تخت دواړو خواوو ته د ده پوځونه په قطار ودرېدل. دا مهال نابېره یعقوب د خپلو درو زرو آس سپرو سره هجوم راووړ، توري ئې راوکښلې او د وینو ویالې ئې وبهولې. کافرانو چې د رتبیل سر ولیدی نو وتښتېدل. په دې ورځ ډېر ستر قتل وسو او فتح د یعقوب په نصیب سوه. د یعقوب لاس ته دومره خزانې ورغلې چې د فکر له حده وتلې وې.

صالح نصر هم په تېښته له زابلستان ځخه ولاړی خو پوځ ئې د یعقوب سره یو ځای سو. یعقوب هغه د زابلستان د ملک ځخه وغوښت او هغه ورکړ خو چې صالح د ده په قید کې مړ سو.

یعقوب د بُست پر خلکو هم لویه جریمه تحمیل کړه، ځکه چې دې خلکو په یعقوب باندې ملنډې وهلې وې. د یعقوب دا فتح د ده د مکر او هنر نتیجه وه» (جوامع الحکایات: ۱۶۰ او ۱۶۱ مخونه. په حواله د: پښتانه د تاریخ په رڼا کی ۲۶۹ او ۲۷۰ مخونه).

پورتنۍ قصه یو ځه ملاحظات او تأملات لري. مثلاً د یعقوب د پوځ تعداد یو ځل زر کسان او بیا درې زره کسان بولي. خو ښایي دومره به نه بلکې ډېر به وو.

په هر صورت، ځیني تاریخ پوهان وایي چې دا کابلشاه (سامند، یا سامنته دیوا) نومېدی او د سکو ځخه ئې معلومېږي چې د هغه سلطنت به د افغانستان پر اکثرو جنوب ختیځو سیمو او د شمالي هند پر یو ځه برخه باندې خپور وو. د ځینو محققینو په خیال د «سامند یا سامنته دیوا» معنی «ښه شهسوار یا سپهه سالار» دئ. سامنته دیوا ځکه د یعقوب اللیث همعصره او په ۸۷۰ میلادي کي د کابل واکمن بلل کېږي چي فرانسوی څېړونکی (فوشه) وایي چي یعقوب اللیث صفاری په کابل کي سپهه سالار قید او بیا ئې مسلمان کړ؛ نو دلته د سپهه سالار ذکر کوي چي کافر او د یعقوب اللیث همعصره وو (پښتانه د تاریخ په رڼا کي: ۲۶۸ او ۲۶۹ مخونه).

کله چي یعقوب کابل ونیوی نو کابلشاهان مجبوراً له کابله ووتل او خپل پایتخت ئې د اباسین پر غاړه د ویهند د سیمي «لاهور» ته ولېږی، خو د یعقوب تر مړیني وروسته د ده د ورور عمرو بن لیث تر واکمنېدو وروسته کابلشاهانو د یو ځه مودې له پاره کابل بیرته ونیوی او ننګرهار او لوګر ئې هم ونیول خو بې ګټې او بې نتیجې وو.

یعقوب لومړنی مسلمان واکمن دئ چي پښتانه ئې په خپل پوځ کي ودرول. ده په کابل او غزني کي ګڼ شمېر افغانان د اسلام په دین مشرف کړل او ویل کېږي چي د غزني ښار هم ده جوړ کړ (پښتانه: ۱۷۱ ـ ۱۷۴ مخونه). په دې توګه یعقوب د یوې داسي ستراتیژۍ د بنسټ ډېره کښېښودله چي وروسته محمود غزنوي پسی بشپړه کړه، یعني:

لومړی ـ هغه د کافرو واکمنانو (یعني کابلشاهانو او رتبیلانو) تسلیمولو، مسلمانولو او یا هم ځپلو او شړلو ته اړم وو چي سلطان محمود دا کار بشپړ کړ.

دوهم ـ هغه په خپل پوځ کي د پښتنو ګومارل پيل کړل چي سلطان محمود دا پلان پسي بشپړ کړ.

دریم ـ هغه د غزني د ښار بنسټ کښېښود چي سلطان محمود پسي بشپړ کړ.

څلرم ـ هغه د بت پرستو افغانانو په مسلمانولو کي ډېر کوښښ وکړ چي محمود غزنوي پسي بشپړ کړ.

په هر صورت، يو کابلشاه د عبدالرحمن سره په ۸۵ هجري کي مِکر او چل کړی وو او هغه ئي حجاج بن يوسف ته د خپل قول پر خلاف ورسپارلی وو، خو ۱۸۰ کاله وروسته د همدې سلسلې يو بل کابلشاه په کټ مټ مکر او چل سره د هماغو مسلمانانو څخه د يوه ښکار سو، خو دا ځل ئي ځپونکي په اصطلاح بهرني عربان نه بلکي خپل هيوادوال ول چي نيکونه ئي مسلمانان سوي ول.

هو، د دې دوو مکرونو اساسي فرق دا دئ چي لومړني د کابلشاهانو او رتبيلانو د اوږده واک پايې ولړزولې خو دوهم ئي کمبله ورټوله کړه! والسلام (ن. صمد).

**اړونده مأخذونه:**


۱ ـ پښتانه د تاريخ په رڼا کښي؛ سيد بهادر شاه ظفر کاکاخيل، يونيورستی بُک ايجنسي، (شپږم چاپ)، پيښور، ۲۰۰۶.

۲ ـ د افغانستان تاريخ؛ احمد علی کهزاد، ژباړن: اورنګ زيب ارشاد، دانش خپرندويه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.

۳ ـ تاريخ افغانستان بعد از اسلام؛ عبدالحی حبيبی، بنګاه انتشارات ميوند، کابل، ۱۳۸۶ شمسی.

۴ ـ افغانستان در مسير تاريخ؛ مير غلام محمد غبار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).

۵ ـ د افغانستان لنډ تاريخ؛ عبدالحی حبيبی، مترجم: عبدالرؤف بېنوا، (اووم چاپ)، صديقی خپرندويه ټولنه، کوټه، ۱۳۹۲ لمريز.

۶ ـ تاريخ سيستان، نويسنده: نامعلوم؛ مصحح: ملک الشعرأ بهار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۶۶ شمسی.

۷ ـ پښتانه (پټانز)؛ سر اولف کېرو، ژباړن: الحاج شېر محمد کريمي، دانش خپرندويه مؤسسه، پېښور، ۱۳۷۸ لمريز.


***

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- **هغه څه چي د خدای د رضائيت سبب کېږي د هغه د مخلوق خدمت دئ، يو څوک نه سي کولای د خدای سره مينه ولري خو د خپل ورور څخه کرکه وکړي.**
- **خپل دښمنان وبخښه خو نومونه ئې مه هيروه.**
- **د فلسفې زده کړه د دې سبب کېږي چي انسان په ژوند کي په هوښياری سره ناخوښه واوسي.**
- **هيڅکله چا ته په کښته سترګه مه ګوره مګر دا چي ته د هغه د راپورته کولو په وخت کي مرسته ورسره کوې.**

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

عبدالهادي ملا

## غزل

زما د خیال تر ستورو ځاځي د شرابو مسته پرخه
زما بت په سترګو وايي ړنګ جهانه زما نرخه
حوصلې که لیونۍ سوې مخ يې مه نيسئ يارانو
نظرمات ته ئې لږ دود کړئ د جنون د دښتي ترخه
داسي ښکاري آسمان خپل سو دم ګړی طوفان را رسي
غرقوي دي "کافرډنګه" اوبه واوښتې له ورخه
شپه اوږده ده او سړه ده، يه شوګير د وصال خوبه!
د اوربل خيال تې اور بل که اتڼ واچوه او څرخه
زه قاتل نه يم غليمه، ته غاصب يې سور لعينه
مه مي چيړه، نه دي چيړم دا ئې زموږ تر منځه کرخه

د يوې غزلي درې بيته:

ما د عشق نغده راوړې، ستا د حُسن هندوستان ته
تې د زړه په کاڼي تول کړه، د وربښمو من په څو دئ؟
شق ضدي مجنون، سرزوره، هر وخت مات له خپله زوره
د ځانمرګو کاڼو نښه، ته وا سر د پښتنو دئ
ما ويل خان تعبير ئې څه دئ؟ زما ژړا خوب کي خندله
وې: شبنم پر اورېدو دی، وې: سور ګل پر غورېدو دئ

عبدالهادي ملا

## غزل

ته چمن کرې د ستورو، په ادا د هر قدم
زه يو سر هزار سودا سم، د پايزيبو په چم چم

ستا د حسن ششمحل دئ، د بانه پر ستن ولاړ
زما د بخت بنياد ختلی، ستا د ورځو په قلم
سحرګر کاته دي جارسم، دا د پټي خولې بولۍ
اوروې ګولۍ بې ږغه، په صنم او په حرم
څه دي وبولم چي څه يې، هر څه ته يې ټوله ته
رنګ د حسن ډنګ د ميني، هم درخو يې هم ادم
ته اجل ته مسيحا يې، ته توبه يې ته ګناه يې
کله مست موج د شرابو، کله تنده د زمزم
زر سجد ې د خوف او تمي، کړې ايرې بادهوا
پوخ تعويذ په اووم پوښ کي، ته يې اوم کړې په يو دم
منتظر بېکسه غمه! آخر رايې غی ځواب:
زه د زړونو په ښکار وتی، خپل نايب درليږم غم

زموږ د ژوند کلا سوه ګړوبه، وخته! وپوښته اسمان:
دا د بل د وينوسېل وو؟ که د خپلو اوښکو نم

سعید وصال/استرالیا

## غزل

هره شپه د خوب بازار کې سرګردان وي
مین زړه چې ورځ وهلې د هجران وي
سوداګر غونډې د ورځې اضطراب وړي
را اخیستی ئې د شپې د سکون کان وي
هر سهار مې طاووسي قبا پر ذهن
هر ماښام مې ګوډرۍ د زړه په ځان وي
د خوشبو تن ته د هوش تلکې کښېږدم
پکښې وتۍ، تور کارګه د بیابان وي
و بورا ته د نصیب قسمت خبري
چې پخپله مې مات کړی جوړ ګلدان وي
په ځنګل کې هم و مات ښاخ ته ولاړ یم
د دې ونې، به هم زموږ په شان ارمان وي
هی! توبه د شُوم دوران له بربندتوبه
یو وطن کې سل سرونه حکمران وي
د ځوانۍ متاع ئې خوښه ده وصاله
پیغلو سترګو کې هندو پر سپین دوکان وي

درخانۍ

هو! ته پر حق یې
زما زړه ستا د او سېدلو ځای نه دئ
زړه مې مات دئ
ته خو له ماتسوو شیانو
کرکه لرې!

مینه انتظار

## غزل

بې تا به چیرې ولاړه سمه هره خوا مې ته یې
ته لاره یې، منزل مې یې همه دنیا مې ته یې
له تا ځخه به څنګه د جفا تمه لرمه
خوښي ته یې، وفا ته یې، خندا، ژړا مې ته یې
ساتلې مې دې ستورې زما د ټولو شبګیرونو
چې تا ته ئې ښکاره کړمه د شپو رڼا مې ته یې
په ګونګه ژبه هم مې دې و تا ته ناره کړې
چوپتیا ته یې، غوغا ته یې د زړه صدا مې ته یې
سزا چې ئې حد نه لرې هغه ګناه مې کړې
پر تا باندې مینه یم هغه ګناه مې ته یې
له «مینې» سره پاته دې لا څو لېونۍ ورځې
کوڅه ته یې، صحرا ته یې، جنون، دوا مې ته یې

صدیق الله مین/کوټه

غزل

د چا مې سر د چا مې زړه په کار دئ
چې غواړې ما زما مغه په کار دئ
سودا کوم خو دکانداره اشنا!
ګران دې وي خیر خو شی مې ښه په کار دئ
غزل ته هر لفظ لکه کاڼې غواړم
غزل ته خیال مې بیا اوبه په کار دئ
جرم تا کړی مجرم زه یم پکې
دلته لږ فرق د ته او زه په کار دئ
مینه! نور دې نو د ځان غم کوه!
نور د چا غم مه کړه او نه په کار دئ

عبدالنافع ثنا/امریکا

## غزل

زه وم غبار پر آئینه باندي لوېدلی ومه
د چا و مخ ته سپېلنی وم دودېدلی ومه

زه له درنښته تر اوښو د چا و نه رسېدم
زه د حیا پېټي پر مځکه غورځولی ومه
چي ئې وژلی وم هغو څپو ځواني کړې وه
زه ئې ملګرو! تر ساحله رسولی ومه
له ماشومتوبه تر زړتوبه مي سفر کړی وو
زه مي د مرګ له پاره دومره ډېر راغلی ومه

د چا د راز مي غمازي کله و نه کړه ثنا
زما خواخوږي ویل څنګه یې؟ زه غلی ومه

حبیب الله قلم مل

## غزل

درد یې د پرهر دی په پرهار کي زخمي سوی
زغم د غم په لاس دی په دې ښار کي زخمي سوی
ثوبه حوصلې ته وسلې د قناعت راوړو
زموږ د پرمختګ یون په دې لار کي زخمي سوی
شپه چي راغله ویې کړ تعجب داسي یې وویل
ورځي! تن دي څنګه په سهار کي زخمي سوی
ومي لیدل دوه مریضان وه پر یوه کټ پراته
یو د وروږ په جنګ بل په بمبار کي زخمي سوی
زیان یې ومغزو ته رسیدلی لیونی چي سو
سر د دې غریب سړي په کار کي زخمي سوی

اجمل ښکلی/کابل

## غزل

د سهار د شبنمي موسم ګلابه
زما زړه درپسي ولي دئ بېتابه؟

رانه ته ولي روانه یې شهریني؟
زندګي ولي ولاړه ده مهتابه؟

دا لا څرنګه پوښتنه ده ژوندونه؟
ولي شومه ستا لېمو ته بې خوابه؟

ستا په شونډو د انکار انکار خبري
سرابونه راروان دي له دریابه

انقلاب ښکته له پښو نه دي نیولي
راوتی نه شي اوس خلک له ګردابه

خپلو ګوتو، خپلو سترګو وچیچلم
تښتېدای نه شم د خپل ځان له عذابه

د رسول مینه په تېغ په توره پالي
د نفرت غږ رااوچت شو له محرابه

په درون کي ئې د کرکي اور بلېږي
او پوستکی ئې اغوستی دئ له آبه

له شپې ستوري راکوزېږي نه اجمله
ښایستونه نه راوځي له حجابه

عصمت زهیر / پښتين

## د سندرو پټيال

کندهاره! عاشوره دي هره ورځ سوه
هره ورځ مي يو پټيال تر تا قربان سي

کندهاره! د سندرو بېرغ دي ورک سو
سور په وينو ياغي سوی دي آسمان سي
غاښ د زهرو ئې موږ نه ګورو مېلمه دئ
د پرهر طبيبان راسي رقيبان سي
خلک وايي پسته اور دئ پسرلی دئ
زموږ په برخه د سرو وينو سور باران سي
پټيال فکر بلولی سور مشال وو
پټيال بېرغ وو د نوموركو توپانونو
د (انکار) دار تر غاړه سرمست دروميي
لوڅوي څنډي سرمست د خلوتونو
د مغان تر کوره رسي پر سکروټو
محرابونه ئې سودا کړي په جامونو
منصوري شهيد درنيسه کندهاره!
ياغي سوې د انکار چيغه ئې ګوره
لمبې پورې په لمن به د آسمان کړي
کربلا ده يوه بله جوړه سوې
د (حسين) د مظلوميت وطن ګواه دئ
د يزيد د يزيديت ليدونکي نسته
دار د (خيال) مستۍ ته سرکوبي کړه

د پټيال له سرکښۍ مقتل غزل سو
د سندرو شهزاده پټيال مي غواړي

د حکمت سروش دوې غزلي

## غزل

سترګو کې نم نم، په زړه کې غم غم
لا به تر کله يمه؟، و تا ته تم تم
تا نه بغير څومره، خسته، زيله، مانده
تا سره مست، خندان، اوسمه سم دم
يا دي يو څه توجه، يا بې پروا کاته
کله ژوندی کله مړ، شم په يو دم دم
تا نه که دين دين، مست د طبلې په تال
ژوند دي که سُر ، په خوند، په ساري ګم ګم
د بنګړو شرنګ شرنګ، د پاولو چک، چک
په ژوند کې شور نه دئ، د پايزېب چم چم
نور په هغه سړي کې، د يادولو څه ول؟
نوم مي په ياد د سروش، خو دئ مي کم کم

## غزل

پر خوله خندا او په نظر کې د غوسې تصوير
څوک جوړوای سي د ګلاب او د لمبې تصوير
نه يې سو پاک، نه يې پيکه کړ زمانې تصوير
کلونه پروت، زما په زړه کې د هغې تصوير
ته داسې جوړ، لکه شهکار د کوم فنکار جانان!
زه داسې مات، لکه د ماتې ائينې تصوير
توبه مي کړې، هر ماښام د جومات خوا ته روان
خو لا په سترګو کې، اوس هم د ميخانې تصوير
په تول حواسو زه درګورم، ته بل خوا ته ګورې
څنګه به هېر کړمه د داسې تماشې تصوير

نقیب الله لطیفي/کلفور نیا

# د صفت او نوم مغیره (ظرفي) حالت

په پښتو کې یوه قاعده ده چې کله تر صفت او نوم (موصوف) وړاندې ستر بلونه (Pre-positions) لکه په، پر، تر، د، او له تر صفت او نوم وروسته اوستر بلونه (Post-positions) لکه کې، سره، څخه، پورې، باندې، پسې، او له پاره راسې، صفت او نوم مغیره (ظرفي) حالت ته اوړي. دمثال په توګه:

| نوم (اصلي حالت) | نوم (مغیره حالت) |
|---|---|
| **زرمینه ناجوړه ده .** | **د زرمینې پر سر درد دئ.** |
| **بریالی هند ته ولاړ.** | **د بریالي سفر هند ته وو.** |
| صفت (اصلي حالت) | صفت (مغیره حالت) |
| **مهربانه زرمینه ناجوړه ده.** | **د مهرباني زرمینې پر سر درد دئ.** |
| **غښتلی بریالی هند ته ولاړ.** | **د غښتلي بریالي سفر هند ته وو.** |

خوکه د (**په**) ستر بل سره مفرد ښځینه صفت او نوم راسي مغیره حالت ته نه اوړي. لاندنیو مثالونو ته غور سئ.

| ناسم | سم | د دال (د) له استعمال سره مناسبت |
|---|---|---|
| **د جګړې جواب به په جګړې ورکوو** | **د جګړې جواب به په جګړه ورکوو** | **د جګړې جواب** |
| **په یکشنبې درځم** | **په یکشنبه درځم** | **د یکشنبې په ورځ درځم** |
| **په غونډې کې برخه اخلم** | **په غونډه کې برخه اخلم** | **د غونډې برخه والو ته وینا کوم** |
| **لیلا په خونې کې ده** | **لیلا په خونه کې ده** | **لیلا د خونې پر بام ده** |
| **په یوې اونۍ کې موټر رانیسم** | **په یوه اونۍ کې موټر رانیسم** | **د یوې اونۍ په ترڅ کې موټر رانیسم** |
| **په امریکې کې اوسېږي** | **په امریکا کې اوسېږي.** | |

دغه راز که د (**په**) ستر بل سره ښځینه صفت او نوم د جمعي په حالت کې راسي مغیره حالت ته اوړي. د ساري په توګه:

په غونډو کې برخه اخلم. (جمع غونډې =مغیره حالت غونډو) : لیلا په خونو کې جارو کوي.

په دې وروستیو کې مې د فیسبوک ځینو ملګرو لیکنې کړې دي، چې صرف دوه ناسم مثالونه ئې ما درته راوړي دي.

| ناسم | سم |
|---|---|
| **حق باید هر پښتون ته ورکړل سي** | **حق باید هر پښتانه ته ورکړل سي** |
| **د کندهار دروند او مېړني اولس ته ډاډ ورکوم** | **د کندهار درانه او مېړني ولس ته ډاډ ورکوم** |

که چیري صفت او نوم په تېرمهال کي د فاعل په توګه راغلي وي او فعل متعدي (Transitive) وي، مغیره حالت ته اوړي، خو که فعل لازمي (Intransitive) وي نه اوړي. د مثال په توګه:

- متعدي فعل سړي ډوډۍ وخوړله زرمینې ډوډۍ پخه کړه
- لازمي فعل سړی بازار ته ولاړ زرمینه په کندهار کي اوسېدله

په لومړني مثال کي سړی ځکه په سړي واوښت چي (خوړل) متعدي فعل ورسره راغلی، مګر په دوهم مثال کي بیا پېښه داسي نه ده، سړی پر خپل اصلي حالت پاته سو، ځکه تلل لازمي فعل ورسره راغلی دئ.

**د اړولو لاربښوونه:**

**۱/ هې (هـ) په لنډه (ي) یا اوږده یې (ې) اوښتل:**

ټول ښځینه صفتونه او نومونه چي په هې (هـ) سره تمامېږي په مغیره حالت کي د ځینو لغاتو هې (هـ) په لنډه یا (ي) او د ځینو دا په اوږده یا (ې) سره اوړي. که فشار د مورفیم پر لومړۍ څپه وو جمع او مغیره حالت ئې په لنډه (ي) سره کېږي، که د کلمې فشار پر دوهمه څپه وو، مغیره حالت او جمع ئې په اوږده (ې) سره کېږي.

مثلاً: ښځه: ښځي، توره: توري، مینه: میني، جګړه: جګړې، خره: خرې، جرګه: جرګې

**۲/ ساده یا (ی) په لنډه یا (ي) اوښتل:**

ټول نومونه چي په (ی) سره تمامېږي په مغیره حالت کي په (ي) سره اوړي.

مثلاً: ګردی: ګردي، خټکی: خټکي، هراتی: هراتي، منګی: منګي، لرګی: لرګي، سړی: سړي

**۳/ لنډه یا (ي) په لکۍ داره یا (ۍ) اوښتل:**

ټول ښځینه صفتونه او نومونه چي په (ي) سره تمامېږي په مغیره حالت کي په ښځینه یا (ۍ) سره اوړي.

لکه: خواشیني: خواشینۍ، دوښمني: دوښمنۍ، وداني: ودانۍ، خوښي: خوښۍ، وروري: ورورۍ، ښادي: ښادۍ او داسي نور ...

**۴/ هې (هـ)، لنډه یا (ي) او اوږده یا (ې) په (و) اوښتل:**

ټول نارینه صفتونه او نومونه چي د جمعي په حالت کي په (هـ/ي) او ښځینه صفتونه او نومونه چي په (ې) سره تمامېږي په مغیره حالت کي (هـ/ي،ې) ئې په (و) سره اوړي.

لکه: اوږدې: اوږدو، لنډې: لندو، شلومبې: شلومبو، منګي: منګو، لرګي: لرګو، سړي: سړو، مړه: مړو، پلرونه: پلرونو، ورونه: ورونو.

**۵/ لکۍ داره یا (ۍ) نه اوړي:**

ټول صفتونه او نومونه چي په (ۍ) سره تمامېږي په مغیره حالت کي بدلون نه کوي.

لکه: نړۍ، هېلۍ، کوچۍ، صدرۍ، لکۍ، هوسۍ او داسي نور ...

نثاراحمد صالح

# د ډاکټر پالوال انځوریز نثر

زه زراعت وایم، خو د ادبیاتو سره مي هم جوړه ده. ځیني کسان ادبیات یوازې د څو متروکو لغاتونو زده کړې او د شعري عروضو یادولو ته وایي، حال دا چې ادبیات د انسان د ژوند سره یو شان عمر لري.

د ژوند د پرمختیا اغیز پر ادب هم سوی، یو وخت نثر یوازې غیرمنظوم کلام ته ویل کېده، وروسته د ملغلرو پاشل پکښې وسول او کرار-کرار ئې لمن پراخه سوه، نن سبا خلک نثر یوازې په غیرمنظوم کلام نه درسره مني.

لکه د نثر د تعریف په اړه چې اختلاف سته همداسې هر مقید کلام نن سبا شعر نه بلل کیږي، ډېر نثرونه سته چې په هنري لحاظ یې له شعر څخه میدان وړی.

لکه مخکې چې ذکر وسو، ژوند او ادبیات سره لازم دي، کله چې ژوند نوی رنګ اخلي ادبیات هم زوړوالی نه مني، د سانسکریټ د بدایي ژبې په اړه دا خبره عامه ده، چې د ورکېدو علت ئې د پخوانیو ادبیاتو او نوي ژوند تر منځ د تناسب نه موجودیت وو، په سانسکریټ کې د ویدي سرودونو خبره لوی پسمنظر لري، خو عالمانو ئې فکر وکړ چې موږ باید د خپلې ژبې تېر اصول په نوي ژوند کې تطبیق کړو، خو د هغه وخت نوي نسل چې د ځان او ژبې تر منځ واټن ولید، نتیجه ئې د سانسکریټ مرګ سو.

زموږ د ځوانانو پر شعر د ډېر (خو لنډ مهاله) تمرکز یو علت دا دئ چې په مکاتبو کې د نثر پر ارزښت هیڅ نه ورته ویل کېږي، دوی په میخانیک ډول یوازې د نثر تعریف زده کړی وي، خو په دې نه پوهیږي چې د یوه هیواد، تاریخ، ادبیات، کلتور او د ملي ارزښتونو ثبت د نثر په توسط تر ډېره کېږي.

زما د نن لنډکي بحث د ډاکټر پالوال په نثر کې انځورونه یا ژوندي تصویرونه دي.

اول باید واضح کړم، چې هنري نثر او علمي نثر ځانله جلا خواص لري، په هنري نثر کې الفاظ، ایماژ او تر یوې اندازې تشبهاتو ته ترجیح ورکول کېږي، خو علمي نثر یوازې پر حقایقو او واقعیتونو بناء وي.

د ډاکټر صاحب پالوال، تر تاریخي لیکنو رادېخوا، معیاري پښتو چې د ژبنیو مسائلو

حل او تحلیل پکښې سوی په علمي نثر کښل سوی اثر دئ خو په دا وروستیو کې ئې د (موږ محوه کېږو) د لیکنو مجموعه تر یوې اندازې په هنري نثر ملمع سوې.

"موږ محوه کېږي" که له یوې خوا د وطندوستۍ حس پیاوړی کوي، له بلې خوا ویونکی فکر کا چې یو داستان لولي، کله چې په کتاب پیل وسي، تر څو ئې ختم نه کړي مشکله ده چې له مخه دي لیري سي.

د هري ژبې ویونکي د ادبي ذوق یو معیار لري، ځیني کسان د پیغام له پاره څه لولي او بعضي بیا د ادبي کنایو او سوژو څخه ځان خبروي. دلته پیاوړی لیکوال هغه دئ چې د خلکو ذوق درک کړي او د هر ویونکي تنده پر خپل – خپل ځای اوبه کړي، د استاد غضنفر په خبره "په زحمت لیکل سوې لیکنه اسانه لوستل کیږي خو بې زحمته لیکل سوې لیکنه په زحمت ویل کیږي". رښتنی لیکوال هغه دئ چې د خپل ژوند له لوړو، ژورو پند واخلي او هغه څه په خپلو لیکنو کې ونغاړي، کوم چې د ټولني غوښتنه وي.

موږ ته یوازې د شعر د تصویرونو خبره کېږي، خو ژوندی ایماژ هغه څه دئ چې لوستونکی له خستګۍ ژغوري، په کومه لیکنه کي چې تصویرونه وجود ولري، سړی فکر کوي چې یوه ژوندۍ صحنه ننداره کوي او یا له بل کس سره په ډیالوګ بوخت دئ.

تاسو د ډاکټر پالوال لاندي جمله ولولئ، چې څه فکر کوئ؟

د پوهنتون محصلان د یو چا څخه سوال کوي:

محصلان: سړی اکا اجازه سته چې د وطن او ټولني په باره کې درې لنډې پوښتني درڅخه وکړو؟

جواب: څنګه پوښتني دي؟ نو وایاست چې څه دي وسي؟

ښاغلې؛ که ته په ښارکې یا تر ښار دباندي چیري سړک کنډوکپر وویني لکه په کابل دروازه کې؛ یا یو پول چیري ناموزه وویني یا لیدلی وي؛ تا د هغه اړوند و مسئول مقام، راډیویا اخبار ته ټلیفون یا د لیک په وسیله سره اطلاع ورکړې ده؟

جواب: یا؛ دغه زما کار نه دئ؛ هر بنده خپلې کرونده؛ دوئ پوهیږي خپل بې کار پوهیږي زما او ستا ئې په څه؟ چې سر دي نه خوږیږي؛ داغ مه پر ایږده.

پوښتندوئ: ولي ته دغه وطن د ځان نه بولې؟ ته ئې په ابادۍ نه خوشحاله کیږې؟

جواب: ما درته وویل چې دا د هغه چا کار دئ چې وظیفه ئې ده.

پوښتندوئ: نو هغه خو په دفتر کې د میز تر شا پر چوکۍ باندي ناست دئ، او پټې هم باندي ښکاره نه دي نو باید یو څوک ئې ونغوروي! هو، دوئ باید خپل ځیني خلګ ولري پر ټاپې باندي له پروګرامه سره سم هر چیري د هر څه ګروېږنې وکړي.

تاسې پورتنی ډیالوګ د محصل او ښاري تر منځ ولید، لکه څنګه چې ښایي د محصل ژبه هم هغسې مهذبه وه خو د ښاري خبري داسې وې، تا به ویل چې په رشتیاګو د کلاچې د سرې غونډۍ د یوه پوخ سنه دوکاندار سره خبري کوي.

زما له پاره د یاد کتاب تر ټولو مهم اړخ د موضوعاتو انتخاب دئ، زموږ ډیری د سن په لحاظ مشران پر دې نه رغیږي چې دا د کیلې پوستکی او د پیپسي بوتل پر سړک مه غورځوه او نه هم دا درته وايي چې د یو چا سره په معنوي اړخ کې مرسته وکړه، خو پالوال صاحب هغه سوژې د خپلې لیکنې له پاره ټاکلې چې هغه د وطن او وطن ژغورنې له پاره ډیرې ارزښتمنې دي.

د استاد پالوال د لیکنې یوه بله جمله وګورئ:

دریمه ډله پنځه تنې د دوولسم ټولګي زدکړیاني نجونې او یوه ئې د پوهنتون زدامنده (محصله) دي. دوئ و یوه کور ته ننوزي او له ښځمنو (ښځو) سره رغیږي.

د پیغلانو ټلواله په اوومه مبنه کښې د لومړۍ کوټې د منځ په برخه کښې و هغې نرۍ کوټې ته ورغله، په دغه کوټه کښې د کیڼ لاس و خوا ته کور د دروازې یوه پله یې پورې او بله پرانیستې وه. و دغه کور ته زړه او نا زړه ورننوتې د سوپ په پای کښې ئې سر ور ایسته کړ. او په لوړ اواز سره ئې رغ کړل: په کور کې ښځمنې څوک سته؟

د ښه لیکوال یوه ښېګڼه په لیکوالۍ کې تلوسه ده، هغه لیکوالان چې د تلوسې پله ئې درنه وي، د هغوی لیکنې لوستونکي په یوه ساه وايي، که د ډاکټر صاحب پورتنۍ جمله وګورو، سړی فکر کوي چې زه په ژوندۍ ښه د نجونو یوه ډله وینم او هغوی بیا داسې یوې کوټې ته داخلیږي، څو کوره پکښې وي، دلته د یوه کور د دروازې یوه پله پیش او بله خلاصه ده، اوس چې دا نجونې دا کور ته ورځي، هلته د هغه کور د نجونو او نورو کوچنیانو د مکتب او زده کړو پوښتنې کوي، دا چې زموږ د ټولنې په ځینو برخو کې تعلیم عیب دئ، نو د هغه کور ښځمنې هم په حیرت ورته وايي چې مکتب ته څنګه خپلې لونې ولېږو، یانې دا خو لوی شرم دئ....

په ادبیاتو او لیکوالۍ کې جدیت، د یوې ژبې او ټولنې د پرمختګ له پاره ډېر مهم رول لري، زموږ اکثره لیکوال خپلې ژبې ته جدي نه دي، نو ځکه داسې فکر کېږي چې ادبیات د بېکاره خلکو کار دئ!

ایا پر دې مو فکر کړئ، زموږ اکثریت ځوانان له ادبیاتو فارغیږي، خو د یوې لیکنې توان په ځان کې نه ویني، دلته د تومنې خبره نه ده، هر انسان د ډېر څه کولو وس لري، خو دلته اساسي بحث جدیت دئ، دوی همدا خپل مسلک ته جدي نه دي، کله چې لیکوال جدي نه وي، نو لوستونکی هم هغسې لیکنه بابېزه کني.

ما چې د استاد پالوال د لیکنې هره کرښه لوستې، حتی یو حرف هم بېځایه نه استعمالوي، هغه لیکوال چې د قلم رنګ او د پیسو استعمال یو ډول کوي، د هغوی لیکنې د پوره ارزښت لرونکي وي. همدا علت دئ چې په هر اخبار کې د پالوال صاحب لیکنه په خاصه تلوسه لوستل کیږي.

د ارسطو له قوله د ابن خلدون د ویناوو د یوې برخې لوستل او په اړه ئې څو میاشتنی تأمل او تفکر، د دې انساني ویښتیا پیلامه وه. ابن خلدون پاته په (۷۳) مخ کې



څېړندوی رفیع الله نیازی/کابل

# په نړۍ کې د ماشوم د ادبیاتو لنډ تاریخي بهیر

له هغه مهاله چې انساني ژوند پيل شوی یعني انسان پیدا شوی او ورسره تولید او تکثر پیل شوی، ماشومان د میندو د مینې او محبت ور ګرځېدلي. د میندو له اړخه د ماشومانو د بوختیا، خوښۍ او ارامتیا له پاره اللو للو ویل شوي، همدغه د بشري ژوند او په ځانګړي ډول د ماشومانو د اولسي ادبیاتو پیل ګڼل کېږي.

بیا وروسته د انساني ژوند له تکاملي پروسې سره سم، چې انسانان په خپل ورځني ژوند کې د ژوندانه له بېلا بېلو پېښو او پړاوونو سره مخامخېږي، لوړي، ژوري ویني، فوکلوري کیسې، داستانونه او افسانې رامنځته کېږي، ماشومان ژبه زده کوي، له اړتیاوو او غوښتنو سره سم پخپله د شفاهي ادبیاتو لومړني، خو عجیب او غریب ادبیات ایجادوي، د لوبو کولو له پاره د ماشومانه فکر په اډانه کې د موزونو اهنګ لرونکو کلیمو او الفاظو له پیدا کولو سره د لوبو او ساتېرۍ ترانې جوړوي، دا پروسه پر مخ ځي، انساني ژوند له کورنیو څخه کلیو، قریو، قبیلو ته رسېږي، نوې ژبې رامنځته کېږي، اولسونه په خپلو کې او د هغه مهال له دېوانو، پېریانو او ښاپېریانو سره مخامخېږي، جګړې کوي او په دوی کې اتلان پیداکېږي. د دغو پېښو او ستونزو پربنسټ افسانې، کیسې او داستادانونه رامنځته کېږي دغه کیسې او افسانې سینه پر سینه له یو پوړ څخه بل، له

يوه اولس څخه بل ته لېږدول کېږي، چي ورسره د ماشومانو د ادبياتو اولسي برخه غني کېږي. دا لړۍ تر هغې دوام پيدا کوي، چي انسان ليک او لوست زده کوي، د ليک او لوست له پيدا کېدا سره سم د شفاهي ادبياتو ځاى ليکلي ادبيات نيسي. د نړۍ بېلا بېل اولسونه ليک، لوست زده کوي او هر څوک په خپله خپله ژبه کي ليکلي ادبيات پنځوي.

د ماشومانو د ليکلي ادبياتو په اړه، چي چا، کله او چېرته د لومړي ځل له پاره ايجاد کړي، يا ئې د ماشومانو له پاره شعرونه، ترانې، کيسې ... او نور څه ليکلي، کومه دقيقه احصائيه نشته، هغه څه چي موږ پرې اوس استناد کوو د لوېديځې نړۍ د يو شمېر څېړونکو څېړني دي او دا هم ځرګنده نه ده، چي دغو څېړونکو به په دغه برخه کي له ايمانداری څخه کار اخيستی وي او کنه، يعني هغه ډول څېړنه به ئې کړې وي، چي حق حقدار ته رسېدلی وي او د هغو اولسونو حق به ئې ادا کړی وي، چي د ماشومانو د ادبياتو په برخه کي ئې لومړني کارونه کړي دي؟ دا معلوموول دومره اسانه کار هم نه دئ. هغه مهال خو څه، اوس اوس چي په نړۍ کي د څېړني پرمختللي سيستمونه رامنځته شوي اوس هم دغه کار له کړاوونو او ستونزو څخه ډک دئ.

په هر صورت اوس موږ يوازي د لوېديځې نړۍ د څېړونکو د څېړنو له مخي په نړۍ کي د ماشوم د ادبياتو له تاريخ څخه ګټه اخلو. د کوچنيانو ادبيات په لوېديځ کي هغه مهال خپلواک شول، چي د ماشومتوب دوري ارزښت پيداکړ او په رسميت وپېژندل شوه. په لوېديځ کي يونانيان هغه خلک دي، چي د لومړي ځل له پاره په نړۍ کي د ماشومانو له پاره د ښوونځي جوړولو نوښت ور په برخه دئ، چي د يونانيانو دغه کار بيا روميانو پر مخ بوت.

"شال پرو په فرانسه کي، په المان کي ګريم ورونو او تر دوی وروسته ځينو ناشرانو په انګلستان کي د خپلو هيوادونو ډېري ښکلي عاميانه کيسې او افسانې وليکلې"(۱).

"نو کولای شو ووايو د ماشومانو له پاره لومړنی ځانګړی کتاب چي (د ماشومانو له پاره ياد ګار) نومېده، په شپاړسمه پېړۍ کې په (۱۶۷۱ او ۱۶۷۲) کلونو کي يو مسيحي روحاني (جېمز جاني وي) په انګلستان کي وليکه او خپور شو، چي مذهبي رنګ ئې درلود. ده غوښتل مذهبي افکار او عقايد په ماشومانو کي د يوې غوره وسيلې په توګه د وېري د مخنيوي له پاره واوسي"(۲).

"په (۱۶۷۸) کال بل کتاب جان بانيان وليکه، دا کتاب هم د لويانو او هم د ماشومانو د ګټي اخيستني له پاره وو، اخلاقي او مذهبي روزني ته پکښي پاملرنه شوې وه"(۳).

همدغه مهال په لوېديځ کي د ماشومانو له پاره نور کتابونه هم ليکل شوي او خپاره شوي؛ خو په دغو ټولو کتابونو کي ماشومانو ته اخلاقي تربيت ښوول شوی، ځکه د هغه مهال ليکوالو دا فکر کاوه، چي د الفاظو او عباراتو په واسطه کولای شي ماشوم ته

اخلاقي ژوندګي وروښيي، دغو ليکنو ورووړو د ماشومانو د ادبياتو ليکلو ته لاره هواره کړه.

په اتلسمه پېړۍ کي په لوېديز کي د ماشومانو د ادبياتو د ساحې په پراخوالي او د کتابونو په خپرولو کي اغېزمن ګامونه اوچت شول، ډېرو شاعرانو او ليکوالو د ماشومانو له پاره ځانګړي کتابونه وليکل، ان دا چي له نورو ژبو څخه ځيني اثار هم وژباړل شول.

په فرانسه کي پل هازارد ( Paul Hazard) د (ماشومان او سړي) په نامه يو کتاب خپور کړ، هغه غوښتل په دغه کار سره د کورنيو پام ماشومانو ته ور واړوي. نوموړی په دغه کتاب کي وايي: "مور ډېر وخت خپلو ماشومانو ته د مناسبو او ځانګړو جامو پيدا کولو په فکر کي يو، خو دا فکر بايد ولي و نه لرو، چي هغوی ته مناسب کتابونه برابر کړو".(۴)

پل هازارد د ماشومانو له پاره مناسب کتابونه د هغوی د جامو په کچه اړين ګڼي، دا په حقيقت کي داسي ده، چي د ماشومانو ادبيات ورته ډېر اهميت لري.

په (١٦٩٧) م کال په فرانسه کي د ماشومانو له پاره ساده روزنيز داستانونه وليکل شول او خپاره شول، چي د دغو داستانونو منځپانګي هم ډېره اخلاقي بڼه درلوده.

په (١٧٩٢) کال د ژان ژاک روسو (امېل) (Emil) په نامه کتاب خپرېدل د ماشومانو د ژوند په تګلوري کي يوه نوې لار پرانيستله، ژان ژاک روسو پخپله د ماشومانو د ښوونې او روزنې په برخه کي د نظر خاوند وو، په دغه کتاب کي هغه ليکلي دي: "د يوه ماشوم له پاره نېکمرغه ژوند هغه وي، چي ازاد وي او په يوه سالم طبيعي چاپېريال کي ژوند وکړي".(۴)

د ژان ژاک روسو هلې ځلې د دې لامل شوې، نه يوازي دا چي په فرانسه، بلکي په نورو ملکونو کي هم لکه: په انګلستان او امريکا کي ليکوالانو او شاعرانو د ماشومانو ادبيا تو ته ډېره پاملرنه وکړه، ماشومانو ته ئې کتابونه وليکل، ښوونه، روزنه او ان دا چي د مذهبي مسايلو زده کړه د داستانونو له لاري هم ترسره کېده.

"نولسمه پېړۍ وه د اروپا په شمال ډنمارک کي يو ليکوال داسي کيسې (داستانونه) وليکلې، په هغه مفهوم چي اوس مو د ماشومانو ادبيات لرو د هغه بنسټ ئې کېښېښود. دغه ډنمارکی ليکوال، چي اوس په نړۍ کي د (ماشومانو د ادبياتو پلار) په نامه مشهور دئ، هانس کريستين انډرسن (Hans Christian Anderson) نومېږي".(۵)

نوموړی ليکوال د (١٨٠۵) ميلادي کال په اپرېل مياشت کي د سه شنبې په ورځ د ډنمارک په ادنس ( **Odense**) ښار کي وزېږېد. په (١۶١٨) ميلادي کال ئې پلار مړ شو، کورنۍ او ځان ته د ډوډۍ پيداکولو په موخه له يو ګنډونکي (خياط) سره شاګرد شو، بيا ئې د سګرېټو په يوه کارخانه کي کار کاوه، په (١٨٧٢) ميلادي کال له کټ څخه د

رالوېدو له امله ورته شدیده ناروغي پیدا شوه او د (۱۸۷۵) میلادي کال د اګست میاشتي پر څلرمه نېټه ئې له دې نړۍ څخه سترګي پټې کړې. اوس په نړۍ کي د اندرسن د زوکړي ورځ (د ماشومانو د کتاب نړۍ واله ورځ) نومول شوې ده.

په نولسمه پېړۍ کي په ټوله نړۍ کي ښوونه او روزنه د ماشومانو مسلم حق وګڼل شوه، د ښووني او روزني پوهانو او عالمانو د ماشومانو اوسني ژوند ته ځانګړې پاملرنه وکړه.

په شلمه پېړۍ کي ماشوم په کورنۍ، ښوونځي او ټولنه کي د ډېر مهم غړي په توګه مطرح او وپېژندل شو، د اروا پوهني، ښووني او روزني پوهانو دغه پېړۍ د (ماشوم پېړۍ) په نامه نوموله ده. د ماشومانو ادبیات په دغه پېړۍ کي ډېر وغوړېدل، کمکیانو ته په هره برخه کي روزنیز کتابونه، رسالې، داستانونه، کیسې او شعرونه ولیکل شول، نه یوازي په لوېدیځ بلکي د نړۍ په نورو برخو کي هم د ماشومانو روزني او ادبیاتو ته په زړه پوري پاملرنه وشوه، دا لړۍ په ډېره چټکي سره تر ننه پوري را روانه ده او نن سبا خو د نړۍ په ډېرو ژبو کي ماشومانو ته د ژوندانه په هره برخه کي لیکني شوي، چي د ماشومانو په روزنه او ادب کي ئې بېساري اغېزه کړې ده.

لمنلیکونه:

۱ – علي پور، منوچهر، اشنايي با ادبيات كودكان، انتشارات فردوسي، ۱۳۷۸ کال، ۱۷ مخ.

۲ – شعاری نژاد، علی اکبر، ادبیات کودکان، انتشارات اطلاعات، ۱۳۸۵ کال، ۲۴ چاپ، ۷۲ مخ.

۳ – پورتنی‌اثر، ۷۳ مخ.

۴ – علي پور، منوچهر، اشنايي با ادبيات كودكان، ۱۸ مخ.

۵ – برنی‌اثر، ۱۹ مخ.

٦ – بیا هم برنی‌اثر، ۲۰ مخ.

**د نه شپېتم مخ پاته ...**

په خپله سریزه کي اووه ګوني اهداف بیانوي. له دې اهدافو څخه یو د بدیع او یا له نوښته ډک مضمون افریني ده.

مور، چي د ډاکتر پالوال هره لیکنه وایو، نوي خبري به ضرور پکښې وي، هغه که ژبني مسائل وي، سیاسي تحلیلونه وي او یا ټولنیزي کشالې وي. که تاسو د (معیاري پښتو)، (مور محوه کېږو) او نوري متفرقې لیکني ولولئ، ډېرخبریالان چي د مایکونو تر شاه ژبارل سوې پښتو وایي او د چا پر هغې غور هم نه نیسي او یا هغه بې غوره چارواکي چي غفلت ئې د ټولني له پاره د ناسور زخم جوړ سوئ، په داسي انداز نقد سوي چي تر څنګ ئې د حل لاري هم بیان سوي.

لیکنه په خپل سرلیک را ټولوم، د پالوال صاحب د لیکنو او لوستونکو تر منځ د نژدې والي عُمده علت د استاد د نثر ژوندي تصویرونه، لنډ خو د پیغامه ډک مطلبونه، د حالاتو مطابق د ښو سوژو انتخاب او پر موضوعاتو د حاکمیت تر ټولو ښه رول لري.

د ډاکتر صاحب د اوږد او صحتمند ژوند په هیله!



سردارولي پښتون زوی

# افغانه نجلۍ

**(د افغانستان پېژندني نخښه)**

کله چې په ۱۹۷۹ع کال کې پخواني شوروي يرغلګرو پر افغانستان برید وکړ، سمدلاسه لوېديځ د خپلو شومو موخو له پاره په مکر سره د افغانانو تر شا ودرېد او افغانان ئې خورا مظلومان او د زړسوي وړ ښوول، يو له مکرجنو تبليغاتو څخه د افغاني نجلۍ ننني د بحث عکس دئ چې په سترګو کې ئې خواري او بېوسي له ورايه نارې وهي. هغه عکس چې لوېديځ غوښتل د روسانو څخه د کرکې له پاره ئې د هر چا په سترګو ورننباسي، لوېديځ د خپلو تبليغاتي دستګاوو په زور دا عکس د نړۍ هر کونج ته ورساوه. د دې عکس تر شا خورا لوی داستان هم پروت دئ چې نن به ئې وشنو.

سټيو ټيم مَک، د نړۍ د نوموتو عکاسانو څخه دئ چې د مشهوري مجلې (نېشنل جيوګرافيک)[۱] سره کار کوي. مک په خټه امريکايي دئ چې ۵۲ کاله د مخه د امريکا په پنسلوانيا ايالت کې پيدا سوی دئ. نوموړی هغه وخت د نړۍ په نوموتو عکاسانو کې حساب سو چې په ۱۹۸۵ع کال ئې د پېښور په ناصر باغ کېمپ کې د يوې افغاني نجلۍ (شربت ګلي) عکس[۲] واخست. دې عکس وروسته خورا ډېر نوم وکړ چې ان يو کال وروسته د نېشنل جيوګرافيک مجلې پر لومړي مخ د «افغاني نجلۍ» تر نامه لاندي چاپ سو.

هغه مهال شربت ګله ۱۲ کلنه او د کډوالو د ښوونځي زده کوونکې وه (دغه عکس هم د ښوونځي د خېمې مخ ته څني اخستل



سوی دئ). هغه مهال چې مک له شربت گلي څخه عکس نیوه د نامه پوښتنه ئې نه وه کړې نو ځکه د «افغاني نجلۍ» اصلي نوم تر ۱۷ کلونو پورې نامالوم وو. د یاد عکس اخیستونکی او ورسره نور ملگري ئې په نیوي یمو کلو کې څو گڼبته د شربت گلي په لټون پسې ناصرباغ ته ورغلي خو بریالي سوي نه ول.

شربت گله پښتنه او ننگرهار ولایت د پچیر او اگام اولسوالۍ د سپین غره د تورې بوړې اوسېدونکې ده. دا شپږ کلنه وه چې د پخواني شوروي اتحاد له لوري ئې په بمبارۍ کې مور او پلار له لاسه ورکړل او تر هغه وروسته د خپل ورور، درو خوندو او انا سره د پېښور ناصر باغ ته راکډه سوه. دې د ۱۹۹۰ع کال په پای کې له رحمت گل سره چې پېښور ته نژدې ئې په یوه تنور کې کار کاوه واده وکړ. اوس شربت گله درې لوڼې لري، چې روبینه، زاهده او عالیه نومېږي او څلورمه لور ئې په کوچنیوالي کې مړه سوې ده.

دغه عکس په داسې حال کې اخیستل سوی چې د شربت گلي سور پوړنی پر سر او اوبو ته ورته شنې سترگې ئې کمرې ته مخامخ نیولي دي. دا عکس د افغان جگړې او په ټوله نړۍ کې د کډوالو د حالت انځورگري کوي. د عکس بل اړخ دا دئ چې شربت گله شنې اغېز لرونکې سترگې لري چې تر اوسه په بل عکس کې نه وې لیدل سوې.

کله چې د نړۍ په ټولو نامتو رسنیو کې د شربت گلي عکس لاس پر لاس سو نو د ۲۰۰۲ع کال په جنورۍ کې نېشنل جیوگرافیک ټلوېزیون د شربت گلي د بیا پیدا کولو له پاره د سټو مک په مشرۍ یوه ډله پاکستان ته واستوله چې له عکاس او خبریال سره ژورنالیست رحیم الله یوسفزی هم د شربت گلي په پیداکولو کې د دوی ژباړن او لاروی وو. دوی د پېښور د ناصر باغ افغان کډوالو کېمپ کې د شربت گلي د پیداکېدو له

پاره کور په کور وګرځېدل، او هر چا ته ئې د شربت ګلي عکس ورښکاره کړ، که ئې څرک ولګول سي. تر دوو ورځو وروسته د ښوونځي یوه ښوونکي وویل، چي دا نجلۍ پېژني، خو اوس ئې خلک علم بي بي بولي، کله چي مک کري ولیده، هغه نجلۍ شربت ګله نه وه، پلټونکي ډلي داسي فکر وکړ چي په غالب ګومان شربت ګله بیرته خپل هیواد افغانستان ته څو کاله مخکي کډه سوې، چي ښایي د توري بوړي په څنډو کي خپلي غرنۍ سیمي ته تللې وي؟

درې ورځي وروسته د ډلې ښځینه غړو چي کله شربت ګله د خوني په لور د تګ پرمهال ولیده، وویل، همدغه شربت ګله ده. شربت ګله اوس د ۳۰ کالو وه او تر دې مهاله د خپل عکس په مشهورتیا نه وه خبره خو کله چي د مجلې کارکوونکو خبره کړه، دا ډېره حیرانه سوه، د پخوا په پرتله د شربت ګلي پر مخ ډېري ناخوالي لیدل کېدې.

په ۲۰۰۲ع کال کي پر شربت ګلي د لومړي ځل له پاره نیشنل جیوګرافک ټلویزیوني رسنۍ یو مستند فلم جوړ کړ چي تر هغه وروسته شربت ګله د افغان جګړې «مونالیزا»[۳] په نوم په ټوله نړۍ کي مشهوره سوه. د فلم وروسته نیشنل جیوګرافیک د هغې د کورنۍ د روغتیا ټول لګښتونه پر غاړه واخیستل او همدا راز ئې ګله د حج د ادا کولو لپاره مکې ته ولېږل.

شربت ګله وایي:

"... هغه وخت ئې په یاد دئ، چي بهرني عکاس ئې د پېښور په یوه کېمپ کي



عکس اخیسته، خو زه نه پوهېدم چي همدغه عکاس به مي ۱۷ کاله وروسته نور عکسونه هم واخلي.".

عکاس وایي:

".. د شربت ګلي لومړی عکس مي په داسي وخت د پاکستان په یوه افغان پنډغالي کي واخیست، چي ګلي په یوه خېمه کي ژوند کاوه".

دغه عکس، هغه مهال د نیشنل جیوګرافیک مجلې په تاریخ کي، تر ټولو غوره عکس ګڼل سوی وو.

شربت ګله په ۲۰۱۴ع کال کي:

شربت ګله اوس ۴۶ کلنه او په پاکستان کي د هجرت شپې او ورځي ګالي، تېر کال په رسنیو کي بړغ سو چي د پاکستان د نفوسو د ثبت اداري یا (نادرا) د حیات اباد (پېښور) دفتر له خوا ځپاره کړی مالومات په ډاګه کوي،

چي د غه ادارې افغان مهاجر رحمت ګل او د
هغه مايني شربت بي بي ته تېر کال د پاکستان
پيژندپاڼي (شناخت کارډ) ورکړی دئ.
پای

د مک د نورو عکسونو له پاره د ده پاڼه
کتلای سئ: http://stevemccurry.com

[۱] ډېر ليکوالان د عکس/فوټو پر ځای د انځور کلمه کاروي. انځور د رسم يا نقاشۍ معادل دئ. ليکوالان بايد دې ځای ته پام وکړي، کنې نو د داوينچي د شهکار اثر، او ورځني عکس توپير به څنګه کوو؟

[۲] نيشنل جيوګرافيک: د امريکا د جغرافيه پوهنې ملي اداره ده، چې په ۱۸۸۰ع کال رامنځ ته سوې ده، چې راپورونو ئې د جغرافيې د نصابونو په پرمخ بېولو کې له لسيزو راهيسې مرسته کړې ده، دې ادارې په انساني تاريخ کې ځيني نادري وکړې، لکه د نوح (ع) د کښتۍ ټوټې پيدا کول، په ځنګلي سيمو کې د حيوانانو کورنی ژوند ثبتول او داسې نور، خو متاسفانه په دې ورستيو کې ئې يو مخ د ځارګرۍ کار ته ملا تړلې ده چې روسانو او ځيني نورو هيوادو ئې پر کار بنديزونه ولګول.

[۳] موناليزا چې په خندرويه نجلۍ هم اوځاره ده، د ايټالوي انځورګر (ليونارډو داوينچي) هغه انځور دئ چې ده په روغنو د سپېدار پر لرګي انځور کړی دئ، ويل کېږي چې ښايي دا به د داوينچي د وخت تر ټولو ښايسته نجلۍ وه.

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- کله چې يو څوک د چا کور سوځوي، نو وه! څه عجب اور به ځني پورته کېږي.
- د بشريت په وړاندي بايد باور د لاسه ورنه کړو، بشريت هغه سمندر دئ چي په څو چټلو څاڅکو نه مردارېږي.
- اصل پت او وقار هغه دئ چې د نورو په بې توپيرۍ سره متاثره نه سي.
- ښه چانس په ژوند کي يو وار دروازه ټکوي.
- بې غيرته خلک تر خپل مرګ مخکې څو واره مړه کېږي.
- د زړېدو څخه شکايت مه کوه ځکه ډېر خلک د هغه چانس نه پيدا کوي.
- که غواړې خپله نړۍ بدله کړې نو خپل فکرونه دې بدل کړه.
- هغه کسان چې پر خپلو کوچنيو اشتباه ګانو باندي اعتراف کوي غواړي خپلي غټي غلطۍ پټي کړي.
- هيڅوک په هغه اندازه چې پخپله فکر کوي بد مرغه يا نېکمرغه نه دئ.
- هغه څوک چې تا په غوسه کولای سي تا فتح کولای هم سي.
- هغه څوک چې ډېره ايجادوي نه سي کولای له ډيري څخه ازاد ژوند وکړي.
- د تنګ نظر خاوندان معمولاً پراخه خوله لري.
- ښځه خوشحاله کېږي چې د هر شي په باب پوښتنه ځني وسي.

پوهنوال رسول باوري/ کابل

# نړیوال کلتوري میراثونه

لنډه سریزه:

نړیوال کلتوری میراثونه د یوه نړیوال سازمان له لوری چې انګلیسي نوم ئې (World Heritage Sites) دئ، مینه والو ته پېژندل کېږي. دا سازمان په ۱۹۷۲ میلادي کال د نوامبر پر ۱٦ مه نېټه د یونسکو په عمومي کنفرانس کې تصویب او ومنل سو چې بنسټیزي موخې ئې د هیوادونو د تاریخي، طبیعي او فرهنګي اثارو د ساتني او ملاتړ چاري ټاکل سویدي. د دې سازمان موخې او اصول د یوې سریزې سره په ۳۸ مادو او اتو فصلونو کې پېژندل سوي او معرفي سوي دي.

د همدې سازمان د اصولو پر بنسټ د هیوادونو دولتي او حکومتي اداري کولای سي چې د خپل هیواد اړوند لرغوني، طبیعي او فرهنګي سیمي او اثار د یونسکو د نړیوالو کلتوری میراثونو په اداره کې ثبت کړي. په دې سازمان کې د آثارو تر ثبت او راجستر وروسته د همدې سازمان دنده ګڼل کېږي چې د هغه اثر د ساتلو او پاللو او نړیوالو ته د ورپېژندلو چاري پر غاړه واخلي.

تر اوسه همدې اداري ۹٦۲ ځایونه او سیمي د نړیوال کلتوري میراث په توګه په رسمي ډول ځان ته منلي چې له دې جملي څخه ۷۴۵ کلتوري ځایونه ۱۸۸ طبیعي ځایونه او ۲۹ مکس یا ګډ کلتوري – طبیعي ځایونه دي. په افغانستان کي یوازي دوه اثره (د جام څلی او د بامیان کلتوري حوزه) په دې نړیوال سازمان کي ثبت او راجستر سویدي. په داسي حال کي چې د افغانستان زیات شمېر لرغوني، فرهنګي او طبیعي اثار او سیمي سته چې د دې نړیوال سازمان په لیک لړ کي د ثبت او راجستر کېدلو وړتیا لري.

په کندهار مجله کې د نړیوالو کلتوري میراثونو د لړۍ د خپرېدلو دوې موخي دي لومړۍ دا چې د دې مجلې ښاغلي لوستونکي دا نړیوال کلتوري میراثونه وپېژني او دوهمه موخه دا ده چې د خپل هیواد هغو اثارو او فرهنګي میراثونو د ساتلو، پاللو او بیا نړیوالو ته د ورپېژندلو پر لور لاره پرانیزو. د یادوني ده چې په دې لړۍ کي به د هر هیواد د نړیوالو فرهنګي میراثونو شمېر یادوو او بیا به د هغو له شمېره یو اثر یا سیمه چې په نړیوال کلتوري

میراث کي منل سوې وي، په لنډه توګه معرفي کړو.

## البانیا

د البانیا له هیواده دوه نامتو اثار په نړیوال کلتوري میراث کي منل سوي دي. یو ئې بوترینت (Butrint) او بل ئې د بیرات او خیروکا سترا تاریخي مرکز ( Historic Centres of Berat and Gjirokastra) په نوم یادېږي. د بوترینت د ودانیو ټولګه د البانیا سهېل ته واقع ده چي د اوسنی سراندا ښار څخه شل کیلومتره واټن لري. د بوترینت لرغونې وداني د یوناني پېر او بیا د روم او بیزانتین د مهالونو را پاته میراث دئ. دا لرغونی کلی یو مهال د یوناني سرتېرو یوه لویه قرارګاه وه، چي د سیمي د ښار له پاره ئې ارزښت زیات وو. دا سیمه د یونسکو له لوري په ۱۹۹۷ میلادی کال د نړیوال کلتوری میراث په لړ کي وشمېرل سوه.





## تیپازا Tipasa

د الجزایرهیواده اووه لرغوني سیمي او ښکلي طبیعی ټاټوبی
Al Qal'a of M'Zab، Djémila، BeniHammad، Tassilin'Ajjer، Valley، Kasbah of Algiers، Tipasa، Timgad
د نړیوال کلتوری میراث په شمېر کي شامل سوي دي. یو له دې شمېرې تیپازا تاریخي ټاټوبی دئ. د تیپازا تاریخي سیمه د الجزایر اړوند افریقایي هیوادونو یو تر ټولو ستراتیژیک ټاټوبی دئ چي د مدیترانې بحیرې پر څنډه د الجزایر له مرکز څخه اویا کیلومتره لوېدیځ لوري ته موقعیت لري. دې سیمي د رومي امپراتوریه بیا د بیزانس تر واکمنی، او بیا د موریتانیا د لوی اسلامي شاهي تر حاکمیته ئې د پېښو په تړاو ټاکونکی رول درلود. د نړیوال کلتوري میراث اداري په ۲۰۰۲ میلادي کال دا سیمه په خپل لیک لړ کي ومنله.

بهر نیولیدونکو لپاره زړه راکښونکی منظرې او ټاټوبی لری. د همدې سیمی په لیدلو د طبیعت او انسان تر منځ د اړیکو خورا لوړ میزان د احساس وړ دی. دا سیمه د ۲۰۰۳ میلادی کال په پیل کی د نړیوال کلتوری میراث په لړ کی ومنل سوه.













## اندورا

د مادریو – فیرافیتا – کلارو ، دره ( Madriu-Perafita-Claror Valley )

د اندورا هیواد یوه طبیعی – کلتوری ښکلې دره ده چی لیدونکو ته یوه وړه دنیاګی او یوه دراماتیکه فضا وړاندی کوی . دا سیمه د اندورا هیواد د ټولی مځکی نه (۹) په سلو کی اندازه سویده چی ټول ټال ۴۲۴۷ هیکتاره مځکه ده . د اوسیدلو په زړه پوری کورونه او د









## ارجنټاین

د ګواراني په نوم د عیسوی مبلغینو مرکز د ارجنټاین هیواد ه تر اوسه نهه (۹) سیمې او ملي پارکونه د نړیوال کلتوري میراث په لړ کې شامل سوي دي:

- Los Glaciares National Park ,Jesuit Missions of the Guaranis ,Iguazu National Park , Cueva de las Manos, Río Pinturas , Península Valdés ,Ischigualasto / Talampaya Natural Parks , Jesuit Block and Estancias of Córdoba , Quebrada de Humahuaca ,QhapaqÑan, Andean Road System

د دې شمېر تاریخي سیمو او طبیعي پارکونو څخه یو هم د عیسوي مبلغینو په وسیله د جوړو سویو ودانیو پاته شوني دي. د ارجنټاین هیواد د اوولسمي او اتلسمي میلادي پېړۍ د ودانیو پاته شوني د لوی ځنګلي سیمي په منځ کې وداني سوي دي او اوس نې پاته شوني د تاریخي ابداتو په توګه د سیلانیانو د پام وړ دي.

## ارمینیا

له ارمینیا هیواده ټوله درې نامتو اثار په نړیوال کلتوری میراث کې منل سوي دي:

١ Monasteries of Haghpat and Sanahin ٢، Cathedral and Churches of Echmiatsin and the Archaeological Site of Zvartnots٣، Monastery of Geghard and the Upper Azat Valley

د ارمینیا هیواد د دې دریو اثارو له شمېره یو هم د بر ازات دره (دره ازات علیا)

ده. په دره کې د عیسوي کلیسا او معبد ډېرین جوړښت د ارمینیا هیواد د ودانیزو روښونو ځانګړنه څرګندوي. په دې معبد او کلیسا کې د پرېکړل سویو ډبرو څخه د بشپړي ودانۍ جوړېدل او هغو ته ځانګړی ډیزاین ورکول، د هغه مهال کلیسایي ودانۍ له نورو عادي ودانیو څخه بېلوي. دا معبد د څلرمي میلادي پېړی تر څوارلسمي میلادی پېړۍ پوري ئې د بشپړي ګټي اخستلو وړتیا درلودل. د ودانیو دا ټولګه په ۲۰۰۰ میلادي کال د نړیوال کلتوري میراث په شمېر کې ومنل سوه.







## استرالیا

### د ویلاندرا بحري غاړه

د استرالیا په ټول براعظم کې تر اوسه نونس تاریخي سیمي او تفریحي پارکونه په نړیوال کلتوری میراثونو کې شامل سوي دي:

-۱ Great Barrier Reef -۲ Kakadu National Park ۳ ،Willandra Lakes Region۴ ، Lord Howe Island Group، -۵ Tasmanian Wilderness ، -۶ Gondwana Rainforests of Australia ۱-۷ ، Uluru-Kata Tjuta National Park ۲-۸ ، Wet Tropics of Queensland- ۹، Shark Bay, Western Australia- ۱۰ ، Fraser Island-۱۱ ،Australian Fossil Mammal Sites (Riversleigh / Naracoorte)- ۱۲ ،Heard and McDonald Islands- ۱۳ ، Macquarie Island-۱۴ ، Greater Blue Mountains Area- ۱۵ ، Purnululu National Par ، - ۱۶Royal Exhibition Building and Carlton Gardens ، -۱۷ ydney Opera House- ۱۸ ، Australian Convict Sites-۱۹، Ningaloo Coast.

د استرالیا د نونس اثارو له شمېره یو هم د ویلاندرا بحري سیمه ده، دا سیمه له دې امله د نړیوال کلتوري میراث په لړ کې شامله سوېده چي د ځمکی پر مخ د جیولوجیکي پلستوسین دورې نخښې سته چې تاریخ ئې څلور ملیونه پنځه سوه شپېته زره (۴۵۶۰۰۰۰) کاله وړاندې زمانه څرګندوي.

د دې تر څنګ د لرغونپوهنې له اړخه ئې هم ارزښت د زیات پام وړ دئ. په دې لرغونې سیمه کې لرغونپوهانو د هو مو سپین سپین انسان د اوسېدلو نخښې تر لاسه کړیدي چې تاریخ ئې ۴۲ زره کاله پخوانیو زمانو ته رسېږي.







ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- ډېر خوشحاله خلک هغه دي چې د خپلې خوشحالۍ له پاره کوم خاص دلیل نه لري خو فقط خوشحاله دي.
- د سولې په وخت کې اولادونه خپل مشران ښخوي خو د جګړې په وخت کې مشران خپل اولادونه خاورو ته سپاري.
- موږ یوازې هغه څوک هوښیار ګڼو چې زموږ سره سر ښوروي.
- د بایللو په وخت کې د ګټونکي اکټ کوه.
- د دې له پاره چې کارونه سم تر سره سي نو باید کمېټه د داسې درو کسانو څخه جوړه سي چې دوه تنه ئې تل غیر حاضر وي.
- هغه کسان چې د نورو سره په جګړه بوخت دي د خپل ځان سره هم په سوله کې نه دي.
- که ته د قهر په وخت کې یوه شېبه حوصله وکړای سې نو به د سلو ورځو د پښېمانۍ څخه ځان وژغورې.
- خپلو فکرونو ته پام کوه ځکه هغوی ستا په خبرو بدلېږي، خپلو خبرو ته پام کوه ځکه هغوی ستا په عمل بدلېږي، خپل عمل ته پام کوه ځکه هغه ستا په عادت بدلېږي، خپل عادت ته پام کوه ځکه هغه ستا په کرکټر بدلېږي، خپل کرکټر ته پام کوه ځکه هغه ستا په سرنوشت بدلېږي.

حبيب الله قلم مل

# اروابناد سید عبدالخالق صادق

له نن څخه پنځلس یا شپاړس کاله وړاندې د کندهار د سیمې اولسي شاعر اروابناد سید عبدالخالق صادق به زموږ د خیاطۍ دوکان ته په دې خاطر راتلی چې زما مشر ورور هم د شعر او غزل ویلو سره مینه درلوده او له عبدالخالق اغا څخه به ئې شعرونه اخیستل. زه ځکه د اغا صاحب په راتلو خوشاله کېدم چې زما هم د شعر لیکلو او ویلو لومړۍ مرحله وه، او له وهمه مې ړغ نه سوای کولای چې زه شعر لیکم او یا له شعر سره علاقه لرم، ځکه چې اغا صاحب داسې خاصیت درلود چې کله به چا ورته وویل چې زه شعر لیکم او یا له شعر سره علاقه لرم نو پر ځای د دې چې تشویق ئې کړي ورته ویل به یې چې ته شاعري نه سې کولای دا کار پرېږده. نو ما هم په دې خاطر نه سوای ورته ویلای او نه مې هم ورته ویل چې زه د شعر سره علاقه لرم.

عبدالخالق اغا تر ډېره وخته اولادونه، نه درلودل، د عمر په پای کې خدای جل جلاله، اولادونه ورکړل کله، کله چې به زموږ دوکان ته راغلی نو کوچنی زوی مبارک شاه اغا به هم ورسره وو، او ده به کله نا کله له نازه ورته یو شعر وایه چې هغه په دې ډول وو:

"دغه زما زوی دئ نې لـــري هیڅوک
نن تر پرون لوی دئ نې لري هیڅوک"

او کله کله به ئې د دې شعر تر ویلو وروسته د ارمان سر وښوراوه او ویل به یې چې نن مړ سم، بې له خدای جل جلاله څخه ماسوا دونده څوک نسته چې د سبا ورځې له پاره د ډوډۍ بند وبست ورته وکړي.

د عبدالخالق اغا د عصر په شاعرانو کې د نقد موضوع ډېره کمزورې وه او دوی په خپلو منځونو کې نه سره منل پر ځای د دې چې خپل شعر یو ه او بل ته د نقد له پاره وړاندې کړي بلکې یو پر بل به ئې انتقادونه کول او ویل به ئې چې ته شاعر نه یې که ته ښه شاعر یې نو ونیسه پر دې جیک شپېته مصرۍ شعر جوړ کړه. زه خپله د دې خبرو شاهد نه یم دا به یا ریښتیا وي او یا درواغ خو اصلي مطلب مې په دې کې دئ چې د کره کتنې موضوع د دې دور په شاعرانو کې نه وه او همدا سبب د دوی د شعر د کمزورۍ لامل ګرځېدلی وو. زه په دې متیقین یم که دوی په خپل منځ کې د نقد یا کره کتنې موضوع عامه کړې وای یو خو به د دوی شعر په خپله قوي سوی وای او له بله طرفه به په اوسنیو شاعرانو کې د نقد موضوع ډېره عامه وای.

خبره را څخه اوږده نه سي را ځم خپلي اصلي موضوع ته چي د عبدالخالق اغا شاعري ده، اغا صاحب د اولسي شاعر په ډکر کي یوه پېژندل سوې څیره وه او د ده د شهرت یوه منبع د کندهار محلي سندرغاړي ول، د اغا صاحب شاعري هراړخیزه شاعري وه او په شعر کي ئې د طنز، عشق، مجاز، حقیقت، د وطن مینه له ورایه معلومېږي. د شاعرۍ ډېره برخه ئې عشقي وه او په عشقي برخه کي ئې حقیقي عشق زیات وو لکه لاندي بیت کي چي وایي:

**الهي د محبت د جام شربت را**
**په دا جام کي ښه نشه د حقیقت را**
**چي لمبه د عاشقۍ مي پر تن څرخي**
**سمندر رنګه په سره اور کي طاقت را**

یا دا:

**عجب لوړ دئ تر قیاس مقام د میني**
**لوی منصب راکړی دئ ګلفام د میني**
**چي د صبر نمک هیڅ پکښي کي نه وي**
**ما خوړلی دئ هغه طعام د میني**

عبدالخالق اغا د حقیقي میني تر څنګ وطني مینه هم درلوده او د وطن په مینه کي به ئې هر وخت ترانې ویلې او ځوانان به ئې د وطن د ابادۍ کار ته رابلل او د اتفاق په راوستولو سره ئې دښمن ناکام باله. په شعر کي به ئې ویل چي موږ نام او ننګ لرو لکه څنګه چي نام او ننګ لرو نو د دې نوم ګټل په اسانه سره نه کېږي و کار او یووالي ته ضرورت لرو او ځوانانو ته ئې دا توصیه وه چي د ځوانۍ موسم هر وخت نه وي که غواړئ چي کار وکړی نو هم دائې وخت دئ:

موږ پښتانه یو لرو ننګ خپل
ساتو په وینو وطن ودان خپل
د سر جنګک تل د هر غلیم یم
عبدالخالق یم د ملک خادم یم
په خار وهمه تل دښمنان خپل
ساتو په وینو وطن ودان خپل

د ځوانانو د هڅوني له پاره ئې هم ډېر شعرونه ویلي دي چي د نمونې په شکل ئې موږ دا یو څو بیتونه راوړو:

**راسئ لاسونه سره یو کړو د وحدت ځوانانو**
**ښکاره هر چا ته کړو د خپل ځوانۍ قوت ځوانانو**
**دا خو رښتیا ده د یو لاس څخه ټک نه خېژي**
**په اتفاق د جامعې کېږي خدمت ځوانانو**
**وخت دئ د کار او د زیار راسئ وکو حرکت**
**په حرکت کي باري ایښې برکت ځوانانو**
**دا د ځوانۍ قوت پیدا دئ تل د کار له پاره**
**هیڅ بې زحمته پر دنیا نسته راحت ځوانانو**

د حقیقي میني په برخه کي د یار د میني تر سخت تاثیر لاندي وو او د یار ښایست تل تر او تازه غواړي او له یاره څخه د وصال اوبه غواړي او یار ته وایي چي که د وصال اوبه رانه کړې نو د سترګو اوبه مي له انتظاره وچېږي که وچي سي نو تمه مه کوه چي بیا به زما د امید غوټۍ په ګلونو بدلي سي:

**خدای دي تل لري تازه ستا د رخسار باغ**
**د ښایست او نمایښت او د انوار باغ**
**له ابرو مي د وصال زړه را اوبه کړه**
**نم د سترګو وچوي د انتظار باغ**

د هغه وخت په شاعرانو کي عبدالخالق اغا د طنز د ډګر پهلوان هم وو داسي پهلوان چي د طنز په هره برخه کي ئې شعرونه درلودل په ټولنه کي چي به هره منفي کړنه په نظر ورتلل ده به هغه په طنزیه شعر کي غندل او بیا به ئې بیرته اولس ته وړاندي کول او د

طنزیه شعر ژبه ئې خورا خوږه وه د هر چا پر غوږونو ښه لګیده. بېلګه:

**عجبه ټکي اچوي دا ښځې اولنۍ**
**چې دوې او درې یو ځای سي سره وايي دیدنۍ**
**یوه وايي زما خو دا سیاه بخت دئ بیخي**
**دا بله وای مړور دي خدای پر ما کړي ژړنېستي**
**چې زه کوم اودس دا راڅه پټه کړي بدنۍ**

**توبه، توبه که وي دوې بني د یو چا په کور کي**
**هره ورځ جوړه وي نوې کودتا په کور کي**
**ځوانه زړې ته وايي ته دي مړوه دا خپل نس**
**ململ پر سره په سپین سر نه ښايي و تا ته هوس**
**جاروکښي د سرای کوه بل په فقد لمونځ وو اودس**
**زړې ګدړي تل ګنډه لکه انا په کور کي**

**زړه و ځواني ته وايي ته تاویذونه راوړې**
**ای ناوي چکي سرخریلي ما له کوره باسې**
**چای او بوره غوټه دي جوړه کړې د مور کړې وړې**
**پخوا دا نه وه اوس نو ولي کیږي غلا په کور کي**

بېلګه:

**د دوو وړونو دعوه ده د بابا پر میراث باندي**
**پردي او خپل پر خاندي**

بېلګه:

**نیمی ږیره خریي نیمی پرېږدي نوی ماډل دئ**
**د غم دي سي بیټل دئ**

بېلګه:

**دا بد رواج د ښځو چې ښادي ته سي روانه**
**پنځه یې چونګوټیانه**
**په غوټه کي سپیرکی او بارتنګ ګرځوي حیرانه**
**پنځه یې چونګوټیانه**

طنز په شعر او لیکنه کي د هغې ترخې دوا په څېر دئ چې د تریخوالي سره سره د مریض درد په دواکېږي د شاعر او لیکوال هنر په دې کي دئ چې ترخه موضوع په داسي خوږو او خندونکو الفاظو کي ونغاړي چې پر کوم چا چې نوموړی انتقاد کوي هغه هم ورسره خاندي خو په دې پوهېږي چې دا ئې زما عیب را په کوته کړ.

طنز د ژوندانه په هر ډګر کي ځکه ضروري دئ چې د دې وسلې په کارولو سره موږ ډېري نیمګړتیاوي او خامی له منځه وړلای سو او د طنز له وسلې څخه موږ باید سالمه استفاده وکړو.

د لیکني په پای کي باید ووایم که څه هم په پښتنو کي دا رواج له وخته څخه موږ ته راپاته دي چې کله یو څوک مړ سي نو بیا ئې ستایو په ژوندون ئې هیڅ قدر نه کېږي خو د نور احمد قرانمل صاحب ئې کور ودان چې مړه او ژوندي دواړه نمانځي او هم ئې ستايي، دا یو نېک اقدام دئ ولي که موږ وګورو په نورو ولایتونو، سیمو او یا نورو هیوادونو کي هر څوک د خپلي سیمي استعدادونه په هغه اندازه هر کال نمانځي چې حق ئې څه چې تر حق ئې زیاته نمانځنه کوي او همدا د دوی نمانځنه وي چې خپل خلګ ئې د هیواد او نړۍ په کچه خلګو ته معرفي کړي دي او خدای دي په موږ کي داسي ذهنیت پیدا کړي چې ژوندي استعدادونه په ژوند کي وستایو او د مړو مړ نوم بیرته را ژوندی کړو خپله لیکنه په یوه لنډۍ سره پای ته رسوم:

ځوانانو یو تر بل جار یږئ
ما د مجلس ځوانان لیدل چې خاوری سوونه

ليکوال: زنه فين



مترجم: واحد فقيري

# د سقراط تلپاته نظريات

دوهم کتاب

اووم فصل

## سقراط اريستارچس ته له فقر څخه د خلاصېدو لاري چاري ښيي

سقراط د خپلو ملګرو سره خورا زيات لطف او مرحمت کاوه. که چيري د سقراط د يو ملګري اقتصادي حالت د کمي بې احتياطۍ په وجه خراب سوی وای او کرياب وای، سقراط هڅه کوله چي د خپلو ښو سلامشورو په زور د هغه مرسته وکړي. که چيزي د سقراط کم يار د فقر لاندي تپېدلای، سقراط په خپل ټول قوت کوښښ کاوه چي هغه وژغوري، او تل ئې ټولو انسانانو ته دا ور زده کول چي د احتياج او ضرورت په وخت کي يو بل ته لاس ورکړي. زه به دلته په دې اړه د سقراط ځيني کارونه ياد کم.

کله چي سقراط اريستارچس خورا خوار و زار او غمجن وليد، داسي ئې ورته وويل، «اريستارچسه، زه ګورم چي ته يو څه خوابدی معلومېږې. ته دي د خپلي خوابدۍ علت او سبب مونږ غوندي خپلو انديوالانو سره شريک که، ښايي موږ ستا مرسته وکړو. هغه په جواب

کي وويل: «یقیناً، زه پر یو لوی مصبیت اوښتی یم. د اوسني بد حالت سره سم، ډېر زیات خلګ د پناه له پاره پېراوس ته راتښتېدلي دي. اوس، داسي پېښه سوې ده چي زما خویندي، وراره ګان او خوریان، د اکا او ماما زامن او لوڼي ټول زما کره راغلي دي، او همدا اوس څلورلس تنه زما په کور کي دي. تاسو خبر یاست چي ما د خپلي مځکي څخه هیڅ نه دي ترلاسه کړي، ځکه چي زموږ دښمانان پر هغو لیري پرتو سیمو باندي ولکه لري. په ښار کي، زموږ کورونه د ژوند نه دي، او په اتن کي هم ډېر لږ خلګ پاته سوي دي. هیڅوک سودا نه کوي، هیڅوک کاروبار نه کوي. هیڅوک هیچا ته پور نه ورکوي، حتی که د سود رېټ ئې جګ هم وي. زه له دې ډار یږم چي ډېر ژر به موږ دېته مجبوره سو چي کوڅې ته راووځو، او په بازار کي په پور پسې ورګرځو. نو بنا، زه ډېر په تشویش کي یم چي ښایي زه به د دې توان و نه لرم چي د خپلو هغو دوستانو سره مرسته وکړم چي زما مخته تباه کېږي، ځکه زما له پاره په دې سختو شرایطو او مفلسي کي، دا نا ممکنه ده چي زه د هغوی پالنه وکړم.»

سقراط د اریستارچس خبرو ته په حوصله غوږ نیولی وو، او داسي ئې ورته وویل: «دا څنګه امکان لري چي سیرامون چي زیات د کورنۍ غړي لري، بیا هم داسي کاروبار او لاري چاري پیدا کوي چي نه یوازي د هغوی اعاشه او پالنه وکړي، بلکي د خپلي کورنۍ د غړو په واسطه بډای سوی هم دئ؟ مګر حال دا چي ته د لوړي او قحطي څخه ببر یږې، ځکه چي ته زیات خپلوان او قریبان لرې.»

اریستارچوس په جواب کي وویل: «سبب ئې دا دئ چي سیرامون یوازي مریان لري، او د هغوی غم باید وخوري، خو زه باید د هغو کسانو غم وخورم چي ازاد انسانان دي.»

سقراط ورته وویل: «ته چا ته ډېر احترام لرې، د سیرامون مریانو ته، او که هغو خلګو ته چي ستا په کور کي دي؟» اریستارچوس په جواب کي وویل: «دا دواړه نه سي سره مقایسه کېدلای.» سقراط په جواب کي وویل: «ایا دا د شرم ځای نه دئ چي سیرامون د هغه چا په واسطه شتمن سوی دئ چي ته اعتراف کوې چي ارزښت ئې کم دئ، خو ته باید نېستمن سې او له مشکلاتو سره مخامخ سې، که څه هم ته داسي خلګ په خپل کور کي ساتې چي د عزت او مقام خلګ دي، او هغه چا ته چي زیات ارزښت ورکوې؟»

اریستارچوس ورته وویل: «په هیڅ وجه نه. دلته یو لوی تفاوت موجود دئ. هغه مریان چي سیرامون لري، هغوی هر یو کسب او فن لري، مګر هغه خلګ چي زما سره دي، هغوی تحصیل کرده خلګ دي، او کوم خاص کسب ئې نه دی زده.»

سقراط ورته وویل: «ایا دا درسته نه ده چي وواېو هغه څوک چي په یو کار او کسب کي ګټور تمامېدلای سي، د هغه یو کسب او فن زده دی؟»

اریستارچوس په جواب کي وویل: «بلي، یقینا.» سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: «ایا دا درسته نه ده چي وواېو چي

اوربشي، ډوډۍ، د نارينه او ښځينه جامې، کوټ، او داسي نور توليدات او صنايع ګټور دي؟» هغه په جواب کي وويل: «بې له شکه همداسي ده.»

سقراط ورته وويل: «ايا د کورنۍ کم غړی له ذکر سويو شيانو څخه يو هم نه سي جوړولای؟» اريستارچوس وويل: «نه، نه، حتی برخلاف. زه باور لرم چي هغوی د دې ټولو شيانو په جوړولو او توليدولو باندي پوهېږي.»

سقراط ور اضافه کړه: «پس، ته له څه څخه ډارېږې؟ ولي ته له فقره شکايت کوې، حال دا چي ته د ثروتمنېدو په چم پوهېږې؟ ايا ته نه ګورې چي ناوسيسياد د څونه زيات ثروت خاوند سو؟ څونه زيات څاروي او رمې لرې. او څونه زيات قرض ئې جمهوريت ته ورکړی دئ؟ اوس نو، څه شی دا سړی دونه زيات بډای کی؟ د هغه د شتمنېدو علت بل څه نه وو مګر دا چي هغه پوهېده چي څرنګه اوربشي توليد کړي. دغه راز، ته ګورې چي سيرتيس يو نانوای دئ، او له همدې کسبه ئې کورنۍ ارام ژوند لري. ايا ته پوهېږې چي د کولياتوس د کلي اوسېدونکي، ديمياس، څرنګه خپل ژوند چلوي؟ هغه چپني جوړوي. مينون په څه شي باندي داسي هوسا او ارام ژوند کوي؟ هغه شالونه جوړوي. ايا د ميګارا اوسېدونکي د خپلو کوټونو او کورتيو د جوړولو په وجه په کافي اندازه ارام ژوند نه لري؟»

اريستارچوس په جواب کي وويل: «زه دا ټول منم، مګر بيا هم زما او د هغوی تر مېنځ يو توپير سته. ځکه لکه څنګه چي هغوی ځيني نيمه وحشي بربري مرييان رانيولي دي، او هغوی ئې دېته مجبوره کړي دي چي د دوی له پاره کار وکړي او هر څه چي ګټي، هغه خپل بادار ته ورکړي. اما زه د درنو مېرمنو او ښاغليو کوربه يم؛ هغوی ازاد انسانان دي، او ځيني ئې خو زما دوستان او قريبان هم دي. ايا ته، سقراطه، ما ته دا وايې چي د هغوی څخه کار واخلم، او پر کار ئې ودروم؟»

سقراط په جواب کي وويل: «ايا ته فکر کوې څرنګه چي دوی ازاد انسانان دي، نو بنا دوی بايد پرته له خوړنګ، څښنګ، او خوب څخه بل هيڅ شی و نه کړي؟ ايا ته دا ويلای سې چي هغه خلک، چي لټ، بېکاره، او عياش ژوند لری، هغوی تر نورو خلګو هوسا ژوند کوي؟ ايا ته هغوی تر هغو خلګو زيات خوشحاله، زيات راضي، او هوسا ګڼې چي په هغو کسبونو او فنونو کي مشغول دي چي موږ ياد کړل؟ ايا ته باور لرې چي بېکاري او لټي زموږ سره د ضروري شيانو په زده کولو کي مرسته کوي، يا ايا لټي او بېکاري موږ سره د زده کړو شيانو په يادولو کي کومک کوي، او يا ايا د جسمي قوت او صحت له پاره ګټوره دي، او يا ايا زموږ سره د ثروتمنېدو په ارتباط مرسته کوي، او يا زموږ سره د موجوده شخصي شتمنيو په ساتلو کي مرسته کوي، او که ايا ته فکر کوې چي کار، زحمت، او کوښښ ګټور نه دي؟ ولي ستا مېرمنو هغه شيان زده کړل چي ته ئې ادعا کوې چي د هغوی زده دي؟ ايا هغوی ګومان کاوه چي دا خوشي بېکاره شيان دي، او ايا هغوی د دې تصميم لري چي هيڅلکه به همدا مهارتونه او فنونه و نه

کاروي؟ او که د دې خبرې برعکس، ایا هغوی فصیله کړې وه چې همدا مهارتونه به زده کوي، او له هغوی څخه به استفاده کوي؟ ایا دا به معقول کار وي چې یو څوک بېکاره او عاطل کښېني، که به دا ښه وي چې یو څوک په ګټورو شیانو ځان بوخت کړي؟ ایا دا یو چا له پاره مناسب کار دئ چې لاس تر زنې کښېني، او په دې سوچ کې وي چې څرنګه باید ژوند وکړي؟ ایا زه کولای سم چې خپل فکر ستا سره شریک کړم، اریستارچوسه؟ ښه نو، زما دا عقیده ده چې ستا په شرایطو کې، نه ته د خپلو مېلمنو سره مینه او محبت کولای سې، او نه ته پر هغوی ګرانېدلای سې. او دلیل ئې دا دئ. له یوې خوا، ته فکر کوې چې هغوی پر تا باندې بوج دي، او له بلې خوا، هغوی فکر کوي چې ته د هغوی په خاطر نا ارامه او نا راضه يې. د دې ببره سته چې ورو ورو په دواړو خواوو کې ناراضیتې او ناخوښې زیاته سي، د پخوانیو ښو او احسانونو یاد به هم پیکه غوندې سي. مګر که چیرې ته دوی پر کوم کار باندې ولګوې، ستا به د هغوی سره مینه او محبت لا زیات سي، ځکه هغوی به ستا له پاره څه ګټه راوړي. کله چې هغوی احساس وکړي چې ته ترې راضي او خوشحاله يې، ته به پر هغوی لا ګران سې. د هغوی به تل ستا احسان او مروت په یاد وي، او هغوی به تل ستا منندوی وي. لنډه دا چې ته به هم یو ښه مهربان دوست يې، او هم به یو ښه یار يې. نو بنا، هغوی ته د دې وړاندیز د کولو په مورد کې باید ځنډ و نه کړې، ځکه دا به د ټولو له پاره خورا واره داره او ګټور وي. زما ګران ملګرې داړه اوسه، هغوی به له دې وړاندیز څخه تود هرکلی وکړي.»

هغه په جواب کې وویل: «په خدای قسم چې دا وړاندیز ډېر ګټور او معقول دئ. زه بله چاره نه لرم مګر دا چې ستا خبره تایید کړم. ستا دې مشورې زما پر فکر او دماغ باندې زورور اثر وکی. که څه هم په دې نژدو وختونو کې ما نیت کړی وو چې نور نو پیسې په قرض وا نه خلم، ځکه زه پوهېدم چې کله زه څه روپۍ په پور واخلم، بیا ئې زه د ادا کولو توان نه لرم، مګر اوس او ستا تر دې مشورې راوروسته به زه هڅه کړم چې داسې قرض پیدا کړم چې زما د شرایطو سره سم وي، او زه به سمدستي په دې پیسو د کار سامان الات او اسباب رانیسم، څو موږ ټول په کار پیل وکړو.»

څه چې سقراط وړاندې کړي ول، هغه کارونه یو په یو عملي سول. اریستارچیس هغه سامان الات رانیول چې ده ضرورت ورته لاره. هغه یو غټ بنډل اوړی رانیولې، او د کور مېرمنو ئې سمدستي له سهاره تر ماښامه پورې په پاکولو او اوبدلو لګیا وې. دې شغل د هغوی فکرونه مشغول وساتل، او د هغوی خپګان کم سو. سمدستي، د پخواني نارضایت او ترینګلتوب پر ځای چې د اریستارچوس او د هغوی تر مینځ موجود وو، هغه خوابدی په متقابله خوشحالي بدله سوه. د ښځینه دوستانو په مینځ کې ئې د هغه مجبوبیت د یوه مېلمه پال کوربه او سخي ساتونکي په توګه لا زیات سو، او د

اریستارچوس له پاره د هغوی موجودیت خورا ضروري او ګټور سو.

لنډه دا چې څه وخت وروسته، رایستارچوس د سقراط لیدو ته راغلی، او د هغه سره ئې ښه خوږ مجلس وکی، او په خندا ئې ویل چې ښځینه خپلوان ئې په ملنډو وایي چې په دې کور کې پرته له اریستاچوسه بل څوک بېکاره نسته. سقراط ورته وویل: «ولي ته هغوی ته هغه مشهوره د سپي کیسه نه کوې؟ د دې نکل په قول دا هغه وختونو دي چې حیواناتو خبري کولای سوای. هله یوه پسه خپل خاوند ته وویل: زما باداره، ته یو عجبه سړی یې. موږ تا ته شیدې، پنېر، وړی، او وریان برابروو، مګر بیا هم ته موږ ته پخپله هیڅ نه را کوې، او موږ خپل وابنه پخپله د خدای پر مځکه پیدا کوو. مګر بلخوا دغه ستا سپی چې تا ته هیڅ ګټه نه در رسوي، مګر بیا هم ته د همدې سپي سره د خپل خولې ډوډۍ شریکوې، او هم تر موږ زیات په مینه او محبت چلن ورسره کوې. کله چې سپي د پسه دا خبري او شکایت واورېد، داسي جواب ئې ورکی: حتماً هلته داسي یو دلیل سته چې ولي زما سره داسي ښه سلوک کېږي. ځکه دا زه یم چي له شرمښه دي ساتم، او دا زه یم چي غله نه پرې ږدم چي تا راځخه غلا کړي، او بالاخره دا زه یم چي لیوان ستا غوښي نه خوري او ستا ویني نه څښي. که چیري زما د شپې او ورځي څار او مراقبت نه وای، تا به ان خپل څر هم نه وای کړی. دا هغه دلیل وو چې سپي وکړای سوای چي پسه قانع کړي، او پسه په خوشحالي دا ومنله چي سپی خپل پخواني ځای او مقام وساتي. په همدې ډول، اې زما اریستارچوسه، تا ته دا په کار ده چي ته خپلو ښځینه دوستانو ته دا ور په یاد کړې چي ته د دوی وفاداره کوربه یې، او ته د دوی د حفاظت او مېلمه پالني له پاره داسي زړوره او باوفا محافظ یې لکه هغه وفاداره سپی چي خپله رمه ساتي. هغوی ته وو‌ایه چي ستا په خاطر هیڅوک د دې جرئت نه کوي چي هغوی ته زیان ورسوي، او دا ستا کوربتوب او مېلمه پالنه ده چي دوی امن او نېکمرغه ژوند کوي.

***

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- د ژوند ستره کنایه دا ده چي هیڅوک د هغه څخه ژوندی نه سي وتلای.
- که ستا شونډان هر وخت ښوري نو زیات څه نه سي زده کولای.
- هر څوک تر هغه وخت پوري نورمال ایسي چي ته یې پېژنې.
- خوشحاله واده د بخت په خزانه کي تر ټولو ستره متاع ده.
- د انسانانو د زړونو تر منځ ډېر لنډ واټن خندا ده.
- هیڅوک د ازل څخه کمزوری نه دئ.
- که ته ما هېروې، په حقیقت کي زما څخه خپل ځان هېروې.
- احمق سړی د خپل ځان جاسوس دئ.
- که ته صادق او مهربان سړی یې ښایي ځیني کسان ستا د صداقت او مهرباني څخه ناوړه استفاده وکړي خو ته بیا هم صادق او مهربان پاته سه.

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

## نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# موریس متېرلینک

(Maurice Maeterlinck)

(۲۹ اگست ۱۸٦۲م بلجیم - ٦ می ۱۹۴۹م فرانسه)

د بلجیم دغه ډرامه لیکوال او شاعر ته په (۱۹۱۱م) کي نوبل جایزه ورکړه سوه. موریس متېرلینک د فرانسې د سمبولیزم ادبي مکتب سره ژور تړاو درلود. د دې مکتب پیروانو د خپلو افکارو او تاثیراتو د بیانولو له پاره له علامو (سمبولونو) څخه کار اخیست.

د نوموړي ډېري ډرامې په نړۍ واله کچه شهرت لري. شنه چوغکه (The Blue Bird) ئې له مشهورو ډرامو څخه یوه ده. دا ډرامه په (۱۹۰۸م) کي تمثیل سوه. موریس متېرلینک په خپله یوه لیکنه (The Tragical in Daily Life) کي لیکي: "د تراژیدیو عظمت او ښکلا د ډرامې په حرکاتو کي نه بلکي په الفاظو کي وي. البته هغه الفاظ نه چي د ډرامې د حرکاتو د وضاحت له پاره لیکل کېږي، بلکي په ظاهره د ځینو ضروري مکالمو تر څنګ باید ځیني داسي مکالمې هم ور اضافه کړل سي، چي په هغو کي پورتني الفاظ موجود وي، ځکه په حقیقت سره په ډرامو کي اصلي حیثیت د همدې الفاظو وي، چي په لومړي نظر بې معنا وي، خو په اصل کي د ډرامې اصلي روح په همدې الفاظو کي وي. په ډرامو کي د ضروري مکالمو تر څنګ ځیني داسي مکالمې هم وي، چي په ظاهره د الفاظو اصراف معلومېږي، خو که څوک لږ ورته ځیر سي، نو هغو ته به معلومه سي، چي یوازي همدا هغه الفاظ دي، چي نه یوازي زموږ غوږونه ئې اوري، بلکي

زمونږ روح ته ځان را رسوي، ځکه چې د دې الفاظو مخاطب روح وي".

موریس مېټرلینګ د بلجیم په ګینټ ښار کې زېږېدلی دئ. کورنۍ ئې فرانسوي نژاده کاتولیکان ول. د هغه پلار یو عریضه نویس او د یو څه جایداد خاوند وو. مور ئې د یو شتمن وکیل لور وه. مېټرلینګ له ځوانۍ څخه په شاعرۍ لاس واهه، خو کورنۍ ئې له دې بوختیاوو څخه ناخوښه وه او له دې امله ئې نوموړی ګینټ پوهنتون ته (Ghent University) د حقوقو د زده کړې له پاره ولېږی.

په یوويشت کلنۍ کې د مېټرلینک لومړۍ نظم ګڼه ګونه (The Rushes) خپور سو. په (۱۸۸۵م) کې نوموړی له حقوقو څخه فارغ سو او بیا ئې په پاریس کې خپلو زده کړو ته دوام ورکړ. په دې ځای کې هغه د سمبولیزم د مکتب له پلویانو لکه (ملارمې) او نورو سره ولیدل. په دې مهال کې مېټرلینک د ځینو شاعرانو آثار فرانسوي ته ترجمه کړل. کله چې نوموړی ګینټ ته بیرته راغلی، نو ئې خپل مسلک (وکالت) ته مخه کړه او تر څنګ ئې شاعري هم کوله. په (۱۸۸۹م) کې ئې د نظمونو لومړۍ مجموعه (Hot House Blooms) چاپ سوه. د نوموړي دا شعري مجموعه له سمبولیکو انځورونو څخه ډکه ده. د هغه لومړۍ ډرامه (La Princesse Maleine) هم په همدې وخت پورې اړه لري. د دې ډرامې محیط یو خیالي وطن دئ.

په نویمه لسیزه کې مېټرلینک څو سمبولیکې ډرامې ولیکلې. له دې ډرامو څخه یوه ډرامه د (Pelleas et Melisande) په نامه تمثیل کړه سوه. کله چې په دې موزیکال ډرامه (Opera) کې د فرانسوۍ ممثلې جارجټ لبلانک (Georgette Leblanc) پر ځای امریکایي ممثلې (میري ګارډن) رول ولوباوه، نو م یترلینک ډېر مایوسه سو او هیله ئې درلوده، چې ډرامه ناکامه سي. که څه هم په (۱۹۰۲م) کې پر دې تمثیل کړه کتونکو ډېرې نیوکې وکړې، خو وروسته ئې ډېر محبوبیت تر لاسه کړ. د ډرامې موضوع مینه وه، مېټرلینک د لیدونکو د اغېزمنولو له پاره تیاره سټېج ترتیب کړ او د غیر معمولي ږغونو په کارولو سره ئې هغوی د احساساتو تر کچې متاثره کړل. د ډرامې موسیقي د (فن لینډ) یو کمپوزر جوړه کړې وه.

له دې وروسته مېټرلینک د ژوند نوي پړاو ته داخل سو. هغه دوبی له خپلې کورنۍ



سره په کلیوال کور کي تېراوه او د کال نوره برخه ئې په گینټ (Ghent) کي. په (۱۸۹۵م) کي نوموړي د ډرامو له ممثلي سندرغاړي جارجټ لبلانک (Georgette Leblanc) سره ولیدل. که څه هم لبلانک لا له خپل هسپانوي مېړه څخه طلاق اخیستی نه وو، خو څلیرویشت کلونه ئې له مټرلینک سره تېر کړل.

د وخت په تېرېدو سره مټرلینک د موضوعاتو په ټاکنه کي ریالیزم ته تمایل ډېر کړ او سمبولیک میلو ډرامایي[1] اړخ ئې پرېښود. د دې مهال له ډرامو څخه ئې یوه تاریخي ډرامه د (Monna Vanna) په نامه ده. همدارنگه یوه بله ئې د (Joyzelle) په نامه ده، چي د یوې بریالۍ میني داستان دئ. په (۱۸۹٦م) کي هغه لبلانک له ځان سره ملگرې کړه او له گینټ څخه پاریس ته ولاړ. د دې مهال د اکثرو ډرامو مرکزي کرکټر لبلانک لوبولی دئ.

تر دې وروسته مټرلینک د مټافیزیکي موضوعاتو لیکني ته مخه کړه. په دې برخه کي هغه د مچمچیو (د شاتو مچیو) او انسانانو د بوختیاوو او کړنو پر ورته والي (مماثلتونو) د رڼېدلو هڅه وکړه. نوموړي له کوچنیوالي څخه د مچمچیو له ساتلو سره مینه درلوده. هغه په دې لیکنو کي د شوپنهاور د پسیمزم نظریه رد کړه او پر ځای ئې آپټمیزم ته ترجیح ورکړه. مټرلینک په دې نظر وو، چي انسان په خپله هڅه او اراده سره خپل تقدیر بدلولای سي. همدا رنگه نوموړی په دې باور وو، چي هر انسان دوه ډوله ژوند لري، چي یو ئې باطني او بل ئې خارجي دئ.

په (۱۹۰۹م) کي کونسټنټن سټانسلافسکي[2] (Konstantin Stanislavski) د مټرلینک مشهوره ډرامه شنه چوغکه (The Blue Bird) د ماسکو په تیاتر کي وړاندي کړه. دا خیالي ډرامه په بنسټیز ډول د کوچنیانو له پاره کښل سوې وه. یاده سوې ډرامه څو ژبو ته ژباړل سوې ده او څو پلا فلم سوې ده. د ډرامې کیسه د یو خوار سړي د دوو اولادو مټل (Mytyl) او ټلټل (Tyltyl) په اړه ده. دغه دوه کوچنیان چي کله د کرسمس د یوې نهیلي ورځي تر تېرولو وروسته بیده سي، نو ټلټل په خوب کي د بیري لیون (Berylune) په نامه یوه شاپېرۍویني. شاپېرۍ ټلټل ته د یوې شنې چوغکي د پیدا کولو دنده ورسپاري. کله چي هغوی د شنې چوغکي په موندلو پسي وزي، نو یو داسي غمي ورسره وي، چي د هغه په واسطه دوی په خپله نژدې شاو خوا کي د موجودو ژوندیو موجوداتو ارواوي لیدلای سي. ټلټل یوې ځنگلي جزیرې ته ځي. د ځنگله ځناور او درختي پر هغه باندي بریدونه کوي، خو یو وفادار سپی هغه ورځخه ساتي. د دې سفر په جریان کي هغوی له ډول، ډول ځایو څخه تېرېږي، لکه د خوښیو ډکو ماڼیو او پاچاهیو. کله چي دوی کور ته بیرته راگرځي، نو په دې وخت کي ئې مور له خوبه راویښوي. له

---

[1]. هغه ډرامه چي د موسیقي برخه پکښي ډېره وي.

[2]. کونسټنټن سټانسلافسکي د روسیې نامتو ممثل او د تیاتر دایرکټر وو.

راوینېدو وروسته شاپېرۍ (بیري لیون) د هغوی د گاونډي برلینگوټ (Berlingot) په بنه ټلټل ته راځي او له نوموړي څخه د خپلو مرگیحالو اولادونو له پاره شنه چوغکه وغواړي. ټلټل چې خپلې چوغکې ته وگوري او پوه سي، چې همدا هغه چوغکه ده، نو هغې ته ئې ورکړي، د هغې اولادونه جوړ سي، خو چوغکه والوزي. په پای کې کوچنیان د ډرامې له نندارچیانو څخه غوښتنه کوي، چې د هغوی شنه چوغکه دې بیرته ورکړل سي.

دا ډرامه د ماسکو په تیاتر کې شاوخوا یو کال پرلپسې تمثیل سوه او وروسته ئې بیا په لندن، نیویارک او پاریس کې هم محبوبیت ترلاسه کړ. پر دې ډرامه باندې په (١٩٤٠م) کې فلم جوړ سو او بیا په (١٩٧٦م) کې د سولې له پاره د ښه نیت په خاطر د امریکا او شوروري اتحاد د هنرمندانو له خوا په گډه تمثیل کړه سوه.

د لومړۍ نړۍ والي جگړې پر مهال متېرلینک په اروپا او امریکا کې ویناوې (لکچرونه) وکړې او له دې لارې ئې خلک د متحدینو له نظریو څخه خبر کړل. په (١٩١٩م) کې هغه له لبلانک څخه جلا سو او د ریني ډاهن (Renee Dahon) په نامه یوې بلې ممثلې، چې د شنې چوغکې (The Blue Bird) په ډرامه کې ئې رول ولوبولی وو، واده وکړ. له دې وروسته نوموړي له خیالي موضوعاتو څخه مخ واړاوه او پر اروا پوهنیزو موضوعاتو ئې لیکنې پیل کړې.

د جنک په دوران کې متېرلیک خپلو ډرامو او مقالو ته ادامه ورکړه. په (١٩٢٦م) کې ئې خپله ډرامه د وینه ژوند (La Vie Des Termites) وړاندې کړه. په دې ډرامه کې امپریالیستي نظام ته کتنه سوې او په هغه کې ئې د خلکو ژوند د وینه له ژوند سره مقایسه کړی دئ.

په (١٩٣٢م) کې کنگ البرټ (King Albert)[3] نوموړی د کاونټ (Count)[4] په توگه وټاکی. کله چې دوهم نړۍ وال جنگ پیل سو، نو هغه د انتونیو سلازار (Antonio Salazar)[5] په مرسته پرتگال ته ولاړ او بیا له هغه ځایه امریکا ته ولاړ. دا د نوموي د ژوند ډېر ترخه وختونه ول. له دې وروسته ئې محبوبیت ورځ تر بلې پر ډېرېدو وو، البته یوه ستونزه ئې دا وه، چې له اروپا څخه د خپلو کتابونو د حق الزحمې په ترلاسه کولو کې له ستونزو سره مخ وو.

په (١٩٤٧م) کې متېرلینک بیرته خپل کور ته ولاړ. په (١٩٤٩م) کې ئې د زړه د حملې له امله له دې نړۍ سترگې پټې کړې او له خپل وصیت سره سم له مذهبي مراسمو پرته ښخ کړل سو. د نوموړي وروستی اثر چې د نظمونو مجموعه وه، په (١٩٤٨م) کې د (Bulles Bleus) په نامه خپور سو.

---

٣. کنگ البرټ له (١٩١٩م) څخه تر (١٩٣٤م) پوري د بلجیم پاچا وو.

٤. کاونټ د ځینو اروپایي هیوادونو یو شاهي افتخاري لقب او منسب دئ، چې د نظام له خوا د خپل ملت تر ټولو لوړ شخص ته ورکول کېږي.

٥. انتونیو سلازار د پرتگال نامتو سیاستمدار او اقتصاد یوه وو. نوموړي له (١٩٣٢م) څخه تر (١٩٦٨م) پوري د پرتگال د لومړي وزیر په توگه دنده ترسره کړې ده.

(۹)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

## د مينې او محبت اقرار

ارشد له شاهي مانۍ څخه راووت او روان سو. کله چي څلور لاري ته ورسېد نو کرار سو. ده غوښته چي خپل کور ته ولاړ سي خو زړه ئې د شېرخان د کور خوا ته د تګ مشوره ورکوله. د ښکلا، مينې او محبت کشش بالاخره دى خپلې خوا ته کش کړ څو چي په آرامو آرامو ګامو نو سره د شېرخان د کور خوا ته روان سو.

ارشد پر شېرخان او د هغه پر مهرمنې مهر بانو باندې دونه ګران سوى وو چي هغوى دواړو به کومه ورځ دى و نه ليدى نو ناآرامه به ول. ارشد هم د هغوى کور ته ورتګ خوښاوه او تقريباً هره ورځ به ورتى. دوه درې واره خو داسي هم سوي ول چي د ده مور هم د مهر بانو کور ته ورغلې وه. شېرخان ده ته اجازه ورکړې وه چي هر کله د دوى کور ته راځي نو کولاى سي چي بې له ړغ کولو راسي. داسي ښکارېده لکه هغه چي د دوى د کور يو غړى دئ.

که څه هم ارشد څو څو واره د شېرخان کور ته ورغلى وو خو تر ننه دا موقع نه وه ورته مهيا سوې چي د حُسن جهانې سره يوازې سي او خبرې ورسره وکړي. ده څو واره دغسې کوښښ کړى وو خو حسن جهانې د دوه په دوه خبرو چانس نه وو ورکړى. دا لا څه، کله چي به دى ورغى نو دا به تر ليدو وروسته قصداً ژر ولاړه سوه او خونې ته به ننوتله او تر هغه مهاله به نه راوتله چي ارشد به بيرته تللى نه وو. کله کله چي به د ډوډۍ خوړلو وخت وو، نو دې به له ډېره شرمه سر کښته اچولى وو او ډوډۍ به ئې خوړل او سترګي ئې نه راپورته کولې تر څو ارشد وويني. د ډوډۍ تر خوړلو وروسته به فوراً ولاړه او روانه سوه.

ارشد ته د حسن جهانې دغه کړني او طرزالعمل په زړه کي شک ور اچاوه داسي نه چي هغه له ده څخه ځان ليرى کوي حال دا چي دى خورا ټينګ پر مين وو. نو ځکه د هغې دا چال چلن دى ځوراوه. شوخه او تېزه ستاره به هم کله کله دې ته راتله. هغې به ډول ډول ټوکي پر کولې خو دې به ځان همداسي اچولى وو.

نن چي کله ارشد کور ته راننوت نو په

باغچه کي ئې شا وخوا نظر وکړ او له ښکه مرغه ویې لیده چي د حُسن شاپیرۍ د حوض پر غاړه چي د شمال خوا ته وو، ناسته ده او د خیالونو په ټال کي زنګېږي. د هغې شا د ارشد خوا ته وه.

ارشد په آرامو ګامونو د هغې خوا ته ورغی. کله چي ورنږدې سو نو زړه ئې په ټوپو او غورځېدو سو. دا جرئت ئې نه سو کولای چي د حسن جهانی سره مخامخ سي. نو ودرېدی او د هغې د نازک او ښکلي بدن په ننداوه سو او سوچونو واخیست.

څه ګړی وروسته ارشد د ښکلا د سمندر څخه راووت او د خپل صنم خوا ته کرار کرار ور روان سو. د ده د ګامونو ږغ یو څه واورېدل سو او حسن جهانه د سوچونو او خیالونو له سمندره راووتله. ځان ئې یو څه راټول کړ او شا ته ئې مخ واړاوه. نابېره ئې ارشد ولیدی چي د دې خوا ته را روان دئ.

د برېښنا غوندي تکه سپینه حسن جهانه ژر ودرېده. په یو زړه وړونکي نظر سره ئې ارشد ته وکتل، فوراً ئې مخ واړاوه او خپلې خوني ته روانه سوه.

ارشد له ډېري مودې راهیسي د هغې سره د یوازي لیدو په تمه وو. خو نن تصادفاً یا له ښکه مرغه دا موقع مساعده سوه. نو ده چیری دا فرصت له لاسه ورکاوه. هغه وو چي په دې پسي ئې چټک چټک ګامونه ور واخیستل. کله چي ور ورسېد نو په رېږدېدلي آواز ئې ورته وویل: د کابل بې ساري ښایستې! د افغانستان پېغلي! مګر د وهم او ډار له امله ئې تر دې نور اضافه څه ورته و نه ویلای سوای.

د محبت او حیرت په نظر ئې د هغې ښکلي څېرې ته کتل او ننداره ئې کوله.

حسن جهانه د ارشد مخې ته په درېدو سره یو څه وارخطا او هیجاني سوه. د هغې د ګلاب غوندي نازک باړخوګان یو څه پیکه سول. د هوسۍ غوندي په ښایسته سترګو کي ئې حیا راښکاره سوه. خو لږ شېبه وروسته ئې بیر ته الوتی رنګ ځای ته راغی. د ښکلو سترګو څخه ئې بېره هم یو څه لږ سوه او پر سپین مخ ئې د ډاډ څپه خپره سوه. په یو مطربانه آواز سره ئې ورته وویل: پر ما ناوخته دئ او غواړم چي ولاړه سم.

دغه خواږه آواز او ولوله ناکه لهجې د ارشد په بدن کي رېږد پیدا کړ. ده په لړزېدلي ږغ ورته وویل چي ناوخته دئ؟ ولاړه سه خو صرف دوې خبري درته کوم.

حسن جهاني په نیمه موسکا سره ځواب ورکړ چي اوس د خبرو وخت نه دئ، بل وخت خبري راسره وکړه.

ارشد: خدای خدای مي کاوه چي داسي موقع برابره سي چي زه او ته یوازي سره ووینو، خو ته هغه....

حسن جهاني د ده خبره غوڅه کړه او ویې ویل: یوازي؟.... ښه، خو اوس نه.

هغې د تګ اراده وکړه خو ارشد ورته وویل: ګراني، ته ولي په زړه دومره سخته یې؟

حسن جهانی په غور او سنجیدګۍ سره ځواب ورکړ: چي څوک پخپله داسي وي نو پر نورو هم همداسي ګومان کوي.

ارشد په حیرانتیا سره ورته وکتل او ویې ویل: په خدای قسم چي زه سخت زړی نه یم.

حسن جهانه: ښايي دا صحيح وي.

ارشد: هو بالکل صحيح ده خو ته.... هو، ستا زړه ډېره دئ، جفاکاره يې او ظالمه يې.

حسن جهانې په خندا سره د ده خبره قطع کړه او داسي ئې ورته وويل: پر ما ولې دا الزامونه لګوې؟

ارشد: ته ولې زما څخه ليرې ځغلې؟

حسن جهانه: اول ته زما د سوال ځواب راکړه.

ارشد: زما د خبرې په ځواب کې به ستا د پوښتنې ځواب پخپله درکول سي.

حسن جهانه: بس ته زما د سوال ځواب مه راکوه او زه به ستا د سوال ځواب نه درکوم!

ارشد: دا خو نو لوی ظلم دئ.

حسن جهانې موسکا وکړه او ويې ويل: مګر زه خو تا ظالم نه بولم.

د حسن جهانې موسکا ډېره زړه راکښونکې او زړه وړونکې وه. داسې معلومېده لکه ارشد چې د يوې شېبې لپاره يو شی ورک کړی وي، خو ژر ئې ځان سم کړ او ويې ويل: وبخښه، ته څومره تېزه يې چې هره خبره پر نورو تاوانوې.

حسن جهانه: داسې نه ده بلکې زه رښتيا ويونکې يم.

ارشد: که حقيقت ويونکې يې، نو ووايه چې ولې زما څخه ځان دومره ليرې ليرې کوې؟

حسن جهانه: ګوره، تا پخپله د دوو خبرو راته وويل، خو اوس دا خبرې څومره ډېرې سوې. نو ځکه ستا د سوال ځواب اوس نه بلکې بل وخت درکوم.

ارشد په تېز نظر ورته وکتل او ويې ويل: ښه؟ ما خو تر ننه ته آرامه او لږ خبرې کوونکې بللې.

حسن جهانه: دا ستا د خيال نيمګړتيا ده.

ارشد: يا، داسې نه ده بلکې ستا ظاهري آرامي او عاجزي خطا ايستلی وم.

حسن جهانې يو ځل بيا موسکا وکړه او ويې ويل: ارشده!

هغې خپله ژبه په صدف غوندي سپينو کوچنيو غاښونو کې کښېکښېل او ويې ويل: هی! ما خوار کی څه کړي دي؟

ارشد د هغې ناز او نزاکت په څېو کې واخيست او ويې ويل: تا زما په روح کې د مينې او محبت احساس پو کړی دئ!

حسن جهانه: مينه او محبت؟ دا خو يو خيالي شی دئ.

ارشد وبېرېدی چې د ده د محبت او الفت صنم لکه چې يو څه ترې ناراضه سوه، نو سخت پرېشانه سو او داسې ئې وويل: آه! حسن جهانې، ته خپه سوې؟ اوف! تا چې د مينې او محبت نوم واورېدی نو متأثره سوې. واوره! زه په همدې خبره اقرار کوم.

حسن جهانې په سنجش او غور سره وويل: محبت خو يو بې اختياره جذبه ده، نو د هغه څخه ليرې والی ښه دئ.

ارشد: بېشکه چې هغه يوه غير اختياري او اضطراري جذبه ده لاکن بې حده ښه کيف لري.

حسن جهانه: ښه کيف؟ يا قطعاً نه. يوه انسان هغه داسې شی بولي چې روح سولوي.

ارشد: داسې خلک اشتباه کوي، يا دا چې هغوی نه پوهېږي، يا هغوی ناکام انسانان دي.

حسن جهانه: ښه، هغه دئ لمر د لوېدو په حال کې دئ. زه بايد اودس تازه کړم. دا

خبري به بل وخت ته وځنډوو.
ارشد: ما ته صرف د يوې خبرې ځواب راکړه.
حسن جهانه: ښه، وفرمايه.
ارشد په مينه ناکه نظر سره هغې ته وکتل. خو حسن جهانی په ګرم نظر سره سترګی ورواړولې او وشرمېده. د هغې زړه په ولولو سو او پر نازکه څېره ئې د ګل غوندي پرخه ولوېده. ارشد د طمعي په نظر ورته وکتل او ويې ويل: ته پر ما ګرانه يې او مينه درسره کوم. حسن جهاني ژر د ده خبره غوڅه کړه او ويې ويل: د دې ځواب حتمي نه دئ.
هغې همدا وويل او روانه سوه، خو ارشد تر پوړني ونيوله او ورته ويې ويل: آه ! ودرېږه، د خدای له پاره يو وار ودرېږه. دومره مه بې لحاظه کېږه. ګراني حسن جهاني! زه پر تا دومره مين يم چي که د لطف په نظر راته و نه ګورې نو ځان به له تا قربان کړم او د تل له پاره به په خواره خوب بيده سم.
حسن جهانه هم ودرېده او ورته ويې ويل: ارشده! ما مه ځوروه، زما لطيف جذبات د محبت په مضرو اړخونو مه ځوروه. زه تا ته دعاوي کوم، ستا د ژوند او ښه ژوند له پاره.
ارشد: ډېره مننه درڅخه کوم. خو پر دغه مړژوانده ناروغ باندي چي دوا ته محتاج دئ، دعا څه تأثير کوي؟
حسن جهانه: ته صرف خبري کوې، حال دا چي دوا يوازي تر ناروغ پوري رسېږي خو دعا تر عرش پوري ځي او هلته د الله حضور ته وړاندي کېږي.
ارشد: هو دا خو صحيح ده. حسن جهاني! مګر ته زما له پاره دوا او دعا واړه مه کوه بلکي يوازي دا راته ووايه چي ته زما د پاک محبت قدر کوې. بس همدا راته ووايه.
حسن جهانه: هو، پاکه جذبه خو حتماً د قدر وړ وي.
ارشد: اوس نو فقط يوه پوښتنه پاته ده.
حسن جهانه : لطفاً هغه هم يو څه ژر ووايه. ته غواړې چي ټوله شپه همدلته خبري سره وکړو.
ارشد، هو، زړه خو مي همدا غواړي، مګر ستا ناز او نزاکت چي ګورم نو داسي کار امکان نه لري. اې د کابل ښايسته پېغلي! زه دې تر تا ځار سم. اې زما روح !آيا ته هم زما سره مينه او محبت لرې؟
ارشد په داسي حال کي دا خبره ورته وکړه چي له محبته په ډک نظر ئې خپلي شاپيرۍ ته کتل او ويې ليده چي د هغې لطيف احساسات يو څه وپارېدل. د هغې سپين مخ سوربخن سو، په سترګو کي يې د حيا سره يو خوځښت محسوس سو. وروسته ئې ارشد ته وکتل او ويې ويل: ارشده! تا زما جذبات متأثره کړل.
ارشد په خورا صميميت او الفت سره ورته کتل او داسي ئې وويل: ګراني حسن جهاني! ته خو يوه زړه سواندې يې، راته ووايه، نه؟
حسن جهانه د ارشد له محبته ډک نظر او کتلو ايساره کړه او ويې ويل چي زما... اوف، يا. ارشده! ورځه چي د ماښام وخت دئ.
ارشد يو څه جرئت واخيست او يو ګام رامخته سو او د حسن جهاني نازک او نرم لاس ئې په لاس کي ونيوی او ورته ويې ويل: زما شاپيرۍ! ووايه، د خدای له پاره ووايه.

حسن جهاني خپل سر کښته واچاوه او ويې پوښتل چې څه ووايم؟

ارشد: آيا ته زما سره مينه او محبت کوې؟

حسن جهانه: ارشده! لطفاً دا مه راڅخه پوښته. هيڅ نسته ..... دا ښه خبره نه ده.

ارشد: حسن جهاني! دونه بې وفايي او ظلم مه کوه. ما ته وګوره. زما ژوند او د ژوندانه هر څه ستا په يو ځواب کي پراته دي. د خدای په خاطر راته ووايه چې آيا زما سره مينه کوې؟

حسن جهاني په شرمناکه او مينه ناکه ډول ارشد ته وکتل او ويې ويل: هو!

بيا يې له ډېري حيا څخه سر کښته ونيوی او پر مخ ئې د ګلابو د پرخي غوندي سپيني خولې راښکاره سوې. ارشد چې دغه روح تازه کوونکی ځواب واورېدی نو زړه ئې وغوړېد او تازه سو. ځېرې ئې ارامي او سکون وموند. د حسن جهاني لاس ئې ايله کړ او ويې ويل: زما شاپېرۍ! بس همدومره خبره مي غوښته. نور به زه صرف په دې اميد ژوندی يم چې يوه حوره مينه راسره کوي.

حسن جهاني وويل: ارشده! تا په ما جادو کړې ده. زه هر وخت....

د حسن جهاني خبره لا پوره سوې نه وه چې ستاره راغله او خندل يې. د هغې د بشاش او خندان تندي څخه د شوخۍ څپې له ورايه ښکارېدې. هغه د دغو دواړو مينانو خوا ته نږدې راغله او ويې ويل: حسن جهاني! تا دا دئ بالاخره د ميني او محبت اقرار وکړ، او ارشده! ته ډېر طالع من او بختور يې چې د کابل شاپېرۍ محبت درسره کوي. واه، تاسي دواړه څومره شرمېږۍ! واه واه، دا هم کومه ادا ده؟!

ارشد او حسن جهانه اول د شوخي ستارې په نابېره راتګ سره وارخطا سول او وروسته وشرمېدل. ستارې بيا وويل: ارشده! تا د ښکلا په دغه ملکې باندی جادو کړې ده. ستا په سترګو کي سِحر دئ. د ښايست دغه نازک بدن دي محسور کړی دئ.

ارشد په شرمناک نظر سره ستارې ته وکتل او ويې ويل: دا چې زما په سترګو کي جادو ده نو داسي نه چې پر تا هم اثر وکړي.

ستارې په خندا سره وويل: زه؟ پر ما جادو اثر نه کوي.

ارشد يو څه موسکی سو او ويې ويل: دا ځکه چې ته پخپله ساحره يې! نه؟

ستاره: زه ساحره نه يم خو....

هغې لا خبره پوره کړې نه وه چې اشرف راغی. هغه په رارسېدو سره وويل: بېشکه چې دا ساحره ده، داسي ساحره چې نور تر خپل سِحر لاندي راولي او بيا هيڅ مخ هم نه وراړوي.

ستاره وشرمېدله او په شرمناک نظر سره ئې اشرف ته وکتل چې د راتګ په حال کي وو.

اشرف چې نږدې راغی نو ستارې ته ئې وويل: اې ښايسته ساحرې! د خدای په خاطر پر دغه سِحر ځپلي انسان خو يو ديدن ولوروه.

ستارې خپلي سترګي له ډېري حيا څخه کښته ونيولې او ويې ويل: ستا هېر سول، ساحره خو حسن جهانه ده او ساحر هم ارشد دئ. د دوی څخه به يوه سحر درباندي کړی وي.

اشرف په مينه سره ستارې ته وکتل او ويې ويل: يا، پر ما باندي تا سحر کړی دئ

ستارې! ځان به نه دوري هوري کوې او نه به مِکر کوې.

حسن جهاني په خندا سره وويل: مکر خو د دې عادت دئ، ستارې! هغه شوخي دي څه سوه؟

ستارې په غلچکي نظر سره اشرف ته وکتل او ويې ويل: څه وکړم، دی چې راغی هر څه ئې ګډوډ کړل، که نه نو ستاسي کار به مي کړی وای!

حسن جهانه: خو اوس به دې زه خوښه سم. ډېره لوړه الوتې، ها؟!

اشرف د ميني او محبت په نظر ستارې ته وکتل او ويې ويل: ستارې، د خدای په خاطر راباندي ورحمېږه.

حسن جهاني په ډکه خوله خندا وويل: هو، زه دي هم واسطه يم.

ستارې په شرمناک ډول حسن جهاني ته وکتل او وې ويل: ته خو بېخي مه واسطه کېږه.

اشرف: که ته پر ما باندي درحم کولو اقرار وکړې نو زه به هيڅوک هم نه واسطه کوم.

حسن جهاني بيا په خندا سره وويل: هو دا بالکل سمه خبره ده. ښه، ته همدا اقرار وکړه، هيڅوک به هم نه درباندي واسطه کېږي.

اشرف په هيله من انداز سره ږغ وکړ چي بس صحيح دئ، هغې اقرار وکړ.

حسن جهانه: زړه دي بيخي د ډېري دئ.

ستارې په موسکا سره وويل چي ته خو ښه زړه سواندې يې او له همدې امله دي د ارشد ورور سره د ميني اقرار وکړ!

ارشد په خندا سره وويل: پر ما غريب به چيري دونه زړه سوی وکړي.

اشرف ستارې ته وويل: ستارې، اوس نو ما ته وګوره يعني هغه چا ته چي تا سِحر پر کړی دئ، د خپل غلام خوا ته.

حسن جهاني د دې خبري په اورېدو سره وويل: زه پوهيږم چي ته زما په مخکي شرمېږې او د اشرف ورور سره خبري نه کوې. ښه، زه دا دئ ځم.

ارشد: او زه هم دا دئ ځم.

حسن جهاني لا حرکت نه وو کړی چي ستارې تر پلو ونيوله او ويې ويل: چيري ځې؟ صبر وکړه.

حسن جهانه: زما تم کېدل نو څه فايده لري؟ هغه چي تا به همېشه ياداوه، اوس دا دئ ستا په مخکي حاضر دئ.

ستارې په شوخو ستر ګو او تېره نظر سره حسن جهاني ته وکتل او بيا ئې د موسکا په حال کي ورته وويل: نن خو ډېره شوخه سوې يې، مزاج دي هم ښه بدل سوی دئ، ها؟

حسن جهانه: ته هم بدله سوې يې او زه هم!

اشرف: او زما څخه خو هيڅوک هم پوښتنه نه کوي. تر ټولو زه ډېر بدل سوی يم.

ستارې غوښته چي يو څه ووايي چي د ماښام اذان شروع سو. ستارې وويل چي هغه دئ آذان شروع سو، درځئ چي لمونځونه وکړو.

اشرف سوړ اسوېلی وکيښ او ويې ويل: اې زما قسمته! بايد لمانځه ته روان سو.

بس ټوله لمانځه ته ولاړل.

نور بيا ...

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

**(څورلسم لیک)**

۲۰۰۴/۹/۲۱م

ګران الحاج عبدالظاهر جانه!

السلام علیکم ورحمة الله!

هیله ده د کورنۍ او دوستانو سره روغ، جوړ او خوشحاله اوسې. خدای تعالی دې تل سرلوړی، بریالی او ښاد لره.

ستا خط د ضمائمو سره له کراچۍ څخه دوې میاشتې وړاندې رارسېدلی وو . ضمائم ئې چې په پښتو به ئې مناسب نوم پېڅه – جمع به ئې پېڅي وي دغه شیان وه:

۱/ د شبو تخم، چې کرلی مې دئ شنې سوي دي، کله چې ګل وکړي ستا د ذکر خیر له پاره به ښه وسیله سي او که ئې ښه بوی هم وکړ دا به د هالنډ د ډېرو رنګارنګ ګلانو په منځ کي یوه اعجوبه وي، ځکه دلته تر حساب زیات رنګارنګ ګلان سته چې ډېر ښه رنګونه لري خو بویان ئې غایب وي.

۲/ څلور قطعې عکسونه، هغه یاران چې اوس به د حق تعالی په رحمت کي نغښتي وي را په زړه سول. تېري سوي زمانې او خوږې خاطرې ئې رایادي کړې، تللي یاران دې خدای تعالی په خپل قرب او جوار کي خوښ لري، که دوی نسته نېک نومونه ئې پاته دي.

کشکي موږ ته هم دغسې ژوند او هغسې مرګ را په برخه سي. دوی دې خدای وبخښي، هر یو مې سترګو ته جګ ودرېدی. خصوصاً مرحوم او مغفور شیخ صاحب او د هغې ورځې وعده ئې زما سره چې باید سرپوزې او چهل زینو ته تللې وای خو تقدیر د دې پر خلاف پرېکړه کړې وه. اما کوچنیان مې یو هم ځای ته نه راوستای سول. د هغې زمانې کوچنیان به اوس تر ځوانې هم تېر سوي وي. پلرونه یا میندې خو به ضرور وي حتی ځیني به ئې اناګانې او نیکه ګان هم سوي وي. خدای تعالی دې ئې ژوندي او په خیر لري. خوشحالي دې خدای پر ېېرزو لري. عبدالباري خان آشنا چې ناکامه ځوانیمرګ سو، ویران چې تر اوږده رنځ وروسته په جلا وطنۍ کي مړ سو. نورمحمد لالا او صاحب داد محمد مرحوم زما د عمرو اشنای مشهور محمدنور اخندزاده چې ډېر روایات ئې پاته دي او مرحوم طالب محمد زمان ټول دې خدای وبخښي. خدای تعالی دې ټولو ته جنتونه او د هغې دنیا ښادۍ ور په برخه کړي.

بله د حاضر کال د لمرینو میاشتو جنترۍ هم راورسېدې. عمر دې ډېر سه. د دغو میاشتو کلونو اصلي ارزش د (یسالونک

عن الاهله) په جواب کي روښانه سوی دئ. فقط د وختونو، مهالونو د پېژندلو له پاره يو تقسيم اوقات دئ، په کار نه وه چي شمسي مياشتي کفري مياشتي او قمري بيا اسلامي مياشتي وګڼل سي. دواړه د عامي استفادې وسايل دي کفر او اسلام په دغو طبيعي شيانو کي مطرح نه وي. خو دا چي څوک يو مخ په تاريخ کي ژوند کوي او حاضر هېروي يا دا چي تماماً د آخرت تظاهر کوي او د دنيا ښېګڼي له نظره غورځوي يا ئې غندي داسي ښکاري چي په لمانځه کي د خپلي دعا مفهوم ته متوجه نه دي چي هر لمونځ په دغه خواست ختموي: اللهم ربنا آتنا فی الدنيا حسنة و فی الاخرة حسنة و قنا عذاب النار.

تا په خپل خط کي پوښتنه کړېده چي د پاکستان څه مطلب دئ چي زموږ څخه لاس نه اخلي؟ او آيا امريکا ئې نه ويني؟ که ئې ويني ږغ ولي نه ورته کوي؟

دغه پوښتنه اخلاقي جواب نه لري، ځکه د بل په چارو کي مداخله هغه هم په بد مطلب که دا د فرد په امورو کي ګوتي وهل وي او که د دولت يا جامعې په مسائلو کي وي، په هر حال کي مردود عمل دئ او د اخلاقي لحاظه د غندلو وړ دئ او په هيڅ توګه د توجيه نه دئ. اما په سياست کي نو دغه عمل موجود دئ او د هغه له پاره کوم جواز ته ضرورت نه لري. منشا ئې د قدرت خلا ده. هر کله چي دغه ډول خلا په هوا کي پيدا سي دوړدوړکه يا بوربوړکه منځته راوړي. او که په اوبو کي وي ګرداب يا څرخاو راولي او په ځمکه کي له دغه راز خلا څخه زلزله رازېږي. په حيواني عالم کي که

چيري زمري يو ښکار وکړي نو پر هغه لاس د زمري او سورلنډي پر حضور سر ښېره تېوسان او بانبې هم د خپلي ونډې له پاره ورحاضرېږي هر څوک د خپل واک په تناسب ونډه اخلي.

اما په سياست کي هم دغه د طبيعت قانون لا ګوري او اصلي علت ئې په هيواد کي دننه د قدرت خلا ده. اما ولي پاکستان؟ پاکستان که تر خپل سياسي جوړښت پخوا وګورې نو دا اصلاً پنجابي مسلمانان وه چي د تېرو اسلامي حکومتونو خوب ئې ليدی چي پر لوی هندوستان مسلط وه، خو په موجود حال کي بې هنره، پراګنده، له مرکزي واک څخه محروم، مسکين خلګ وه چي د تعليم يافته، بډايو، متحدو هندوانو په اړخ کي پراته وه او هندوان د خپلو عصري صلاحيتونو په مرسته و مرکزي قدرت (انګرېز) ته ورنژدې وه او دغو پنجابي مسلمانانو داسي فکر کاوه چي محروميتونه ئې د مسلمانۍ په نسبت دي. او د خپلو نيمګړتياوو د بشپړولو له پاره ئې نظر يوازيني آزاد، ليکن په عين حال کي کمواکه اسلامي دولت عثماني ترکيې ته وو چي د اسلامي خلافت ادعا ئې درلوده. حتی تحت الحمايه افغانستان ته ئې هم اسره کول، کله کله به ئې مراجعه هم ورته کول چي که چيري د دوی خوله په وچه سي. که څه هم معقول نه وو خو دا احساس بد هم نه وو. په لړ وخت کي ئې تر دوهم جنګ وروسته په دوه ټوکره پاکستان په برخه سو، چي په دنيا کي د نفوس په اعتبار لومړی اسلامي دولت وو. پر هغه سربېره ئې هم له هندوستان سره د انډول برابرولو ضرورت نه وو رفع سوی، نو ئې غربي

خوا ته پرتو اسلامي دولتونو ته د بالقوه ملگرو په سترگه کتل او حتی پر افغانستان ئې د طبیعي ملگري په شان حساب کاوه، البته د مشر ورور برخه ئې بې گفتگویه ځان ته ټاکلې وه. دا وخت آزاد اسلامي دولتونه هم پیدا سوي وه، د افغانستان پاچهي کورنۍ چي افغانستان ئې خداداد دولت گاڼه، د پاکستان له پټو ارادو څخه بېربدل په لومړي سر کي ئې لا په نه منلو او ناوړه مناسباتو فقط د دې له پاره پیل وکړ چي د پاکستان سره ئې د احتیاط له پاره فاصله نیولې وه. د بېطرفۍ د اعلان سره سره و شوروي اتحاد ته تر مطلوبي اندازې ډېر ورنژدې سوه.

پاکستان خپله د کشمیر معضله تر اوسه هم نه ده حل کړې خو د بنگله دېش بېلتانه نور هم دغه ته اړم کړ چي سترگي افغانستان ته سرې کړي او د مکافات تلافي له دې خوا وکړي.

له غیبو روس وښوېبدی او په سهیل ننووت. د پاکستان بجل شکه سوه، په زور، زر او زاریو ئې پناهنده خصوصاً پښتنانه ځانته ورمات کړل. د روس تجاوز پر افغانستان باندي و امریکا ته د زوی زېری وو. بې مالکه، بې بازخواسته، وړیا مځکه، ناپوه ارزانه خلگ تر ابده په سوړسک جنگېدای سوای، د روس زني دلته ښه تړل کېدای سوې، او د ویتنام کسات دلته ښه اخیستل کېدای سو. هغه پاکستان چي د ضیاء الحق د کودتا په نسبت غندلی وو، اقتصادي مرستي پر بندي وې. د امریکا له پاره د توپ تخته او د ضرورت د رفع وسیله سو. اقتصادي بندیزونه ځني پورته سول او په عوض کي کومکونه پر راپیل سول. حتی پرمختللي اسلحې بې توله پر راروانې سوې. د پاکستان رسوخ ئې په اسلامي نړۍ کي ورزیات کړ، حتی د ذروي قدرت پر انکشاف ئې هم سترگي ورته پټي کړې اوس دا دئ اووم ښکاره اټمي مملکت دئ. د امریکا تر مرستو علاوه ئې د سعودي عربستان او نورو پټرولي عربو په خزانو کي هم لاس خوشي سو. تر هر څه بالا د پاکستان ټول تصرفات په افغانستان کي آزاد او مباح وپېژندل سول. اصلاً جنگ د پاکستان له لاري اداره کېدی که څه هم بالمال د امریکا و هدف ته نژدې کېدل ئې مهم رکن وو. افغانستان ئې معناً او مادتاً داسي وران کړ چي پر پښو درول ئې اوس د دنیا له پاره هم آسانه نه دئ او بیا به ئې هغه حال ته رسېدل یو خوب او خیال وي.

پاکستان ټولي جهادي ډلي تر خپل نظر لاندي د خپلو منافعو له پاره وروزلې، حتی هغه ډلي چي (بعضي ئې) څه څه مذبذبي سوې. د هغو د لیري کولو کار هم ورته گران نه وو او طالبان ئې د خلق الساعه په شکل پر راوایستل او جهادیان ئې په وسکښتل. ځکه د هري جهادي ډلي تار او پود، تانسته او بافته دوی په خپله جوړ کړي وه او ښه ورمعلومه هم وه، یوازي ئې د نصرالله بابر چوف غوښت. آیا پاکستان دغه افغانستان چي نه مالک لري نه ئې خلگ په ژبه پوه دي مفت کالزي پرېږدي؟ په داسي حال کي چي دلته تر اوسه د قدرت خلا پر ځای پاته ده. او پر دغه سربېره له شوروي اتحاد څخه ظاهراً بېل سوي نوي جمهوریتونه هم بالقوه هر څه لري، تر مځکي

لاندي او د مځکي پر مخ او که پاکستان هغو ته رسېدل وغواړي نو غير له دغه چي د افغانستان له لاري د هغو سره تماس ټينګ کړي بله لار نه لري. دا ټول داسي دلايل دي چي د سياسي لحاظه پاکستان ته د مداخلې اجازه ورکوي اما د اخلاقي لحاظه نه. نور چي هر څه يوې خوا ته پرېږدې د دوی په حساب دا ميليونونه پناهنده تقريباً شل کاله نه بايد هيڅ اجر او مکافات ولري؟ مال ډيمرچ؟ لري سړي نه؟

ستا دوهمه پوښتنه دا ده چي آيا د پاکستان دغه مداخلې امريکا نهويني او که ئې ويني نو ولې ږغ نه ورته کوي؟ مطلب ئې څه دئ؟

بيا هم د حق او سياست خبري منځته راغلې. امريکا د يوه دولت په توګه په عمومي اسامبله کي د يوه بل هر هيواد په شان د يوې رايې حق لري که څه هم ئې ناحقه د امنيت په شورى کي د جنګ د فاتح په دود دائمي کرسۍ او د ويټو حق تر لاسه کړی دئ (البته غير عادلانه). په دغه اعتبار نو کله چي د ملګرو ملتونو موسسه باقي او د امنيت شورى فعاله وي امريکا په واقعي صورت د امر او نهي صلاحيت نه لري. نه بايد امر بالمعروف او نهی عن المنکر پر غاړه واخلې. اما: که د دنيا يوازينی زبرځواک وي او د يمن الملک نغارې وهي او وايي چي د ربع مسکون پر هره ذره ئې سلطه او نظر سته، پر هره قاره ئې هډې او عسکر سته، تر نسته چي ورغبرګه ئې کړي. په هغه وخت کي نو بيا هم سياسي مصلحتونه تر عدالت او انصاف دمخه دي.

۱/ پاکستان لوی هيواد دئ، چي د دنيا د ۶/۱ نفوس سره د مسلمانۍ په لحاظ روابط لري.

۲/ پاکستان د وو داسي هيوادونو سره ګډي پولي لري چي هر يو ئې د دنيا ۶/۱ نفوس لري چي دا نو جمله سوه د دنيا سمدم نيم نفوس.

۳/ له شوروي څخه د ببلو سوو برخو له منابعو څخه که ښه استفاده امکان ولري هغه په اوله درجه کي د پاکستان او ايران له لاري ممکنه ده د افغانستان موضوع نو اوس نوره حل ده خو ايران لا تر اوسه په ژبه ځان نه پوهوي. او په دوهمه درجه کي ترکيه مهمه ده. خو د پاکستان مزيت په دې کي دئ چي مخ پر انکشاف ګڼ نفوسه ايشيا (خصوصاً هند ته څرمه دئ) ممکن د کشمير د لانجې د حل له پاره تلابنونه تر پنځوس کاله وروسته د دغي کلاوې بل سر وي. که څه هم د ناممکن په اندازه مشکل کار دئ.

۴/ پاکستان هغه دولت دئ چي د خپل ژوند په اوږدو کي د امريکا په خوله نه مړ وو نه ژوندی. د امريکا د سفيري په لومړني ملاقات کي ئې د طالب پر سر پښه کښېښوده او د ساعت عقرب ئې ۱۸۰ درجې دور وخوړ. او ملا ضعيف ئې په پوري وهلو راوپوست.

۵/ د دغه پاکستان برکت وو چي د چين د عظيم جمهوريت سره د امريکا مناسبات عادي او قائم سول.

۶/ کله په پکټ کي ورسره شامل وي کله بې مهاره ورسره ځغلي او ورسره مل وي.

کله چي د يوه دغه ډول دولت او افغانستان تر منځ پرېکړه په کار سي آيا د عدالت په تله ئې بايد وتلې که د زنګله د قانون پر اساس؟

اوس خو په موجود حال کې د پاکستان په اداره کې دننه امریکا ورسره ده، په سترګو ئې ويني چې د افغانستان د جنګ په اوږدو کې يا حتى لا د پاکستان له تاسيسه څخه مسلمانی ته دونه هوا ورکول سوې ده چې هغه هوا خو په هيڅ صورت د وتلو نه ده. نو که ئې لږ وي هم به شل کاله وخت وغواړي. اوس دستي د پاکستان تر نيمي مځکي پر زياته برخه اسلامي احزاب په آزاد انتخاب (دموکراسي) مسلط سوي دي. ممکن د نفوسو د جملې څخه نيمه برخه ئې هم دا عقيده ولري، له بله اړخه دوی ويني چې روزانه ئې څو تنه تر غوږو نيولي وي امريکا ته ئې په لاس ورکوي او د قاعدې نوم پر ايږدي. په جنوبي وزيرستان کي د پاکستاني عسکرو جنګونه تر امريکايي نظارت لاندي ئې بېله بېلګه ده، نو انساني جامعه د برق په سوچ پر بل مخ نه سي اوښتای. په داسي حال کي چي د پاکستان حکومتونه هم ټوخي د خدای له پاره نه کوي. او د امريکا بيا د پيسو سره تانګونه شلېږي، خصوصاً چي دا وخت ئې پورونه د آسمان تر ستورو هم زيات سوي دي. نو که دانه مانه جنګيالی له پاکستانه را اوړي د پاکستان او افغانستان تر منځ خو تر سلو لاري زياتي لاري سته. دا نو طبيعي ګډل کېدای سي، خصوصاً چي تاوان ئې امريکا ته متوجه نه وي. نو آيا د افغانستان پر سر و دغسي پاکستان ته منت وکړي؟

په داسي حال کي چي تر افغانستان سل کوټي پاکستان ورته مهم دئ او افغانستان ته هم د پاکستان د سر په صدقه راغلی دئ.

پر دغو ټولو حسابونو سربېره پاکستان د افغانستان په سياست کي په کوتاه اندېښي کي ډوب دئ، چي دغه مطلب ته به وروسته اشاره وکړم.

اما امريکا هر څونه چي واکداره او مالداره هم سي بايد په هغه اندازه خپلو ګټو ته هم متوجه وي. ځکه د دوی په داخل کي هم آزادي سته هم دموکراسي. هلته پوښتنه او حساب کېږي نو د ګرې له ها بل مخه ئې راوهلې ده، راغله پر افغانستان رانازله سوه، د څه له پاره؟

دا کار په يوه سر هم کولای سي، خو دنيا د ډپلوماسۍ دنيا ده. دنيا دارالاسباب ده، هر څومره چي هدف ته څوک په لږو تلفاتو کم مصرف او چابک ورسېږي هغه اندازه ئې خير دئ او پلان ئې معقول دئ. سربېره پر ټول حرص هم څوک پنځه سره ګوتي په خوله نه ننه باسي.

دا سمه ده چي زمری خپله برخه لري، چغال خپله برخه، خو موږک هم که بې برخي پاته سي خوا بدوي او وراني کوي. ځکه نو په افغانستان کي پاته کېدل يا دلته راتله هم د حکمت له مخي غواړي چي يو بل چا ته هم امتياز او ونډه ورکړي، نو چا ته؟

د افغانستان شپږ ګاونډيان دي. چين، تاجکستان، اوزبکستان، ترکمنستان، چي اکثرو ئې کمونستي دور تېر کړی دئ او چين لا پکښي ولاړ دئ. نورو چي کمونستي پرې ايښې ده، نظام او سيستم، زعماء او مشران ئې هغه دي چي وه. د داسي چا سره امريکا له نژدې څخه مناسبات نه ساتي او نه هم له زړه څخه پر هغو ويسا کولای سي. د ايران سره، د هغه مملکت د اسلامي انقلاب له پيل څخه ئې سترګه خوړلې ده. تر څو چي سوشلستي کيمپ په دمه کي وو، اسلامي رژيمونه دوی ته د منلو وړ وه، اوس نو هغو ته هيڅ اړتيا نه حسوي بايد په مخه ئې هم کړي. نو په هغو شپږو ګاونډيو کي يوازي

پاکستان پاتېږي، هغه پاکستان چي د دوی مخلص دئ (حکومتونه ئې) او د دوی نژدې دوست دئ. که څه هم ځني خلگ ئې پر مسلماني ولاړ دي، خو دا دئ تلاښ شروع دئ چي د ترکيې و درجې ته ئې ورسوي او يوازي د آذان په مسلماني ئې قانع کړي. آيا دغه پاکستان د هغې مداخلې پر سر چي په افغانستان کي ئې کوي بايد وترټي؟ او په هغه کي پاکستان سابقه هم لري، اقلاً د ۲۵ کلو راهيسې او د امريکا خلاف هم نه دئ د دغو دلايلو پر اساس يو عملاً نظامي حضور لري د زمري په برخه کي او بل مداخله کوي د موږک په ونډه کي. هغه څوک چي په دې خوښ نه دئ له خپله سره بايد بلا ليري کړي او تر هر څه وروسته ملت جوړ کړي او د دولت د جوړېدو له لاري د قدرت خلا ليري کړي نو به ئې ځکه مالک پيدا کړي او خلگ بازخواست گر او کالخوايه. نه به څوک د دهشت ځالي جوړوي، نه به خپل کور ورانوي نه به دا غواړي چي د ځان له پاره بېگانه قيم ولري. اولس به وي د ټولو غم او ښادي، ځکه او آسمان به شريک وي خپل او پردي به پېژني. دا نو يو آرمان دئ. تمنا ده، هيهات هيهات. يو څو پاني مي په خوړو ستړگو توري کړې نه يم خبر ستا د پوښتني جواب به سوی وي که نه او ستا خوا به په خوړه سي که نه؟ وبخښه دا يوه خبره چي مي په مکتوب کي وروسته ته پرې ايښې وه هغه مي اوس راپه زړه سوه. او هغه دا چي پاکستان د افغانستان په مورد کي تېروتلی دئ، بايد پر خپل سياست له سره کتنه وکړي. هغه دا چي د دنيا يوازينی ستر قدرت چي هم نه سي کولای پنځه سره گوتي په خوله ننباسي، په دباندي کي تاجکستان او ازبکستان ته هم لږ او ډېر امتياز ورکوي او په داخل کي هم ناپښتانه عناصر په موقتي قدرت خوشاله کوي. البته تر هغه وخته چي د ده سره پاته وي او له نورو سره گوتي بندي نه کړي او د اسماعيل خان اثار په ځان کي ښکاره نه کړي. نو پاکستان ولي داسي فکر کړی وو چي دا افغانستان يو مړ خوسکی دئ، زه به ئې په يوازي سره د ټولو گاوندیانو او منطقي د قدرتو تر سترگو لاندي په پنځو لغړو د ځان په گټه د حلال دائرې ته ورسوم؟

هند د خپل عظمت او ايران د خپل ثروت او شمال او روس ئې د خپل قدرت سره له نظره غورځولې وه؟ يا ئې له نظره غورځول غواړي؟

په دې توگه آيا دوی افغانستان هضمولای سو؟

ډېره به ښه وي چي په افغانستان کي هر څوک چي هر څه غواړي د افغانستان گټي هم د خپلو گټو سره يو ځای په نظر کي ونيسي او يوازي پر خپله ټکۍ اور نه واړوي. د دوستۍ له لاري ښه مناسبات دوام کولای سي او د افغانستان خلگ هرومرو نن وي که سبا د بې غرضه او غرضي دوستۍ تر منځ توپير کولای سي.

زما سلامونه به ستا دوستانو او کورنۍ ته ووايې که چيري مولانا سلطان محمد د ژوند پر مېنه وي هغه ته هم له سلامه سره ووايه چي ستا خو به نو اوس ارمان ختلی وي هره ورځ نوي صحنې راوزي يوه تر بلې په زړه پوري.

د اوږده ليک لوستل چي مي درباندي تحميل کړه د هغه له پاره بخښنه، که ژوند وو بيا به هم صحبت کوو.

الله دي مل سه

مخلص – هاتف

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه

## بلا وه برکت یې نه ؤ

کله چې مې په کراچۍ کښې و اؤرؤپا ته د سفر اسباب او لوازم برابر سول، تر هر څه دمخه مې په کابل کښې له بزرگوار پلار (چې مؤږ به اغا باله) څخه د خدای پامانۍ اخیستلؤ تکل وکئ. که څه هم دا مهال د کابل د شاوخوا سیمؤ امنیتي حالات د طالبانؤ د وروستییؤ عسکري یرغلو په وجه د ډاډ او باور وړ نه وه، خؤ سره له هغه هم د اغا بې خدای پامانییه د دې اؤږدې پردېسۍ روحي بوج ډېر را ته درؤند او څؤرؤنکی ایسېدئ. ښایي پر زړه مې اورېدله، چې دا به له هغه روښانزړي او روښانفکره پلار سره د ژوندانه وروستی دیدار یې (وي).

– په کابل کښې خؤ به څه کارمار نه لرې؟

و احسان لالا ته مې په ټؤکؤ او خندا و ویل.

– په کابل کښې؟

احسان لالا په ډېر تعجب او اریانۍ و ویل.

– هو په کابل کښې.

– څوک څې؟

– زه خپله څم.

– درې میاشتې دې له راتگه نه کیږې، بیا په کابل کښې څه کیې؟

– غوارم له اغا څخه خدای پاماني واخلم.

– د څه شي خدای پاماني؟ ته پوهېږې چې څه وخت به دې کار جوړیږې؟

– هو.

– څه پوه سوې؟

– دغه دئ پاسپورټ او ویزه مې.

– ته را که.

احسان لالا و هر څه ته په خریدار نظر وکتل؛ او تر څو واره پورته کښته کولؤ وروسته یې په مانادار خندا وویل:

– دا خؤ ریښتیا هم هر څه تیار دي.

– څه وخت دي واخیستل؟

– یو څو ساعته دمخه.

– ما فکر نه کاوه، چې دؤنه ژر به دي کار جوړیږي. کله به په خیر رهي کیږې؟

– د کابل څخه چې په خیر راغلم.

– خبرؤنه خؤ حتماً آروې! په دې روځؤ کښې د کابل وضعه زمؤږ و ستاسي تر درې میاشتې مخکې سفر هم ډېره خرابه سوې ده. پر دې خبرؤ دي هم فکر کړئ دئ که یا؟

– د امنیتي وضعې په خړپړتیا او خطرو ښه خبر یم؛ خو د اغا بې خدای پامانۍ او دؤعا مې و دې لیري او اوږدې مساپرۍ ته زړه نه ځي. خدای ته مالومه ده، چې بیا به مې پر کم اسمان او کمه پاچهي و هغؤ خواؤؤ ته نصیب کیږي.

– کله په خیر ورځې؟

– که ژوندی وم، سبا په خیر حرکت دئ. یو ګړی دمخه مې د فابریکې له انډیوالانؤ څخه هم یو و نیم خطؤنه او پیغامؤنه واخیستل.

– داسې ژر.

– هو نو خلګ ناحقه نه وایي: پر ښو تلوار پر بدؤ تأمل. اول غوارم په خیر د اغا دؤعا او حقپلي واخلم؛ او بیا په سره سینه و دې لوی سفر ته تیاری وکم. آخوا ته خؤ به څه کار یا پرمایش نه لرې؟

– دا ګړی خؤ هیڅ کار او پرمایش نه لرم. اغا، نازو او نورؤ دوستانؤ ته مې سلامؤنه وایه.

سبا سهار په خړه د پېښور په سروېس کښې، چې پاکستانیان یې د انګرېزانؤ په دود کوچ بولي، کښېناستم. تر تقریباً څلیرویشتؤ ساعتو پرله پسې مزل وروسته د حیدرآباد، سکهر، میاوالي او بنو له لارې و پېښور ته ورسېدلم. هغه روځ او شپه مې د حیات آباد په لومړي فېز کښې د ډاکټر شکؤر جان دی (دوی) په کور کښې تېره کړه، چې زما د مېرمنې د اکا او خاله زوی دئ. شپه مؤ تر ډېره د افغانستان، په تېره بیا کابل د سیاسي او امنیتي حالاتؤ په باره کښې په کیسو او تبصرو تېره کړه. سهار لمانځه مهال له کوره را و وتلؤ. څو دقیقې مؤ د رخشې یا ټکسي په هیله پر عمومي سړک انتظار وکئ. د رخشې یا ټکسي هیڅ څرک نه ؤ. اخیر مې له ډاکټر شکؤر سره خدای پاماني وکړه؛ او په کراره د کابل د موټرانؤ د اډې پر لور ور رهي سوم. له نېکه مرغه د کابل د موټرانؤ اډه د دی له کوره څخه ډېره لیري نه وه. تر څو دقیقو پلې مزل وروسته و اډې ته و رسېدم؛ او په لؤمړني فلاینګ کوچ کښې کښېناستم. ښایي د کابل د جنګي حالاتؤ په وجه د سپاریو شمېر لږ ؤ؛ ځکه نو تر ښایسته ډېر ځنډ وروسته رهي سؤ. د تېر وار په پرتله، دا پلا موټر په ډېرې چټکۍ لار وهله. د غرمې ډوډۍ مؤ د لته بند په شاوخوا کښې د سړک د غاړې و یوه محقر هوټل ته و رسوله، چې و ځنګ تې دوه – درې ختین دؤکانؤنه هم د مشتریانؤ پر مخ خلاص وه. د موټر ځیني سپاري و هوټل او ځیني نور و

دغوٓ دوٓکانو ته د څه خوړلوٓ او رانیولوٓ په نیامت ور غلل. زه د انارو او هغي لو خرې ته ور تېر سوم، چي د دوکانوٓ و ښی خوا ته پر نسبتاً لوړه شگلنه مځکه پرته وه. داسي برېښېدل، چي خَرهَ سوي انار له تگاوٓ یا نوروٓ نیږدې سیموٓ څخه راوړل سوې يي. خیر، څو داني مي رانیول؛ او څو گامه آ خوا يي په مینه مینه وخوړلوٓ ته وجوړېدم. په کابل کښي مي له ځینوٓ دوستانوٓ او همصنفیانوٓ څخه د تگاوي انارو صفتوٓنه آروېدلي وه، خوٓ کله چي مې په خپله رنگ او خوند ولیدئ، له کنداري انارو سره يي په هیڅ اړخ کښي سیالي نه سوای کولای. دوستانوٓ او همصنفیانوٓ ته مي په زړه کښي و ویل: کې د کندهار انار خوړلي وای هیڅکله بې د دې وچوٓ او پوٓچکوٓ تگاوي انارو صفتوٓنه نه کولای. د انارو خوړلو پر وخت مي د پوهنځی د زمانې د هغه کابلي همصنفي خبره هم را یاد سوه، چي یوه روځ يي د نورو همصنفیانوٓ په منځ کښي د ټوکوٓ ټکالو په بڼه و ویل: «هاروٓن جان ازی خاطر ذهین است، که بسیار انار قنداری خورده. هر کس مثل او انار قنداری بخوره همی طو [همین طور] ذهین می شه.» دا چي کنداري انارو زما پر ذهانت څه اغېزه لرله که یا، د څېړني او پلټني وړ خبره وه، خوٓ د کنداري انارو په خوَند او لوړ کیفیت کښي هیڅا شک او تردید نه لاره. په کراچي کښي تر اوسه کنداري انار او انگوٓر د چمن د انارو او انگوٓرو په نامه خرڅېږي. یوه روځ مي و یوه رېړی والا ته و ویل: تر دې وروسته د چمن د انارو پر ځای د کنداري انارو نارې وهه. ول (ویل) ولې: ما ول : کوربنادې په چمن کښي خوٓ د چښنگ اوٓبه هم نه پیدا کېږي، داسي سرهَ انار څنگه پکښي شنه کېدای سي؟ په خندا يي و ویل: موٓږ ته څه مالومه ده ټول پاکستانیان يي د چمن انار بولي.

مازیگر مهال موټر د کابل د مکروریانوٓ و ساحې ته و رسېد. په داسي حال کښي چي له هر ډول بار او سامان څخه مي اوږې سپکي وې، برېښنا غوٓندي د مسلخ پر چَوٓک ځني کښته سوم؛ او په دریم مکروریان کښي د پلار د استوگنځی پر لور ور رهي سوم. که څه هم تر دې وخته لا پر ښار د تیارې وزروٓنه نه وه غوړېدلي، خوٓ سره له هغه هم پر لارو او سړکو د خلگوٓ هیڅ ږغ و ږوٓغ نه آروېدل کېدئ. حتا د اغا دی د بلاک په شمال ختیځ لور کښي د نانوایي پر شاوخوا هم سړه ځنا وه. د چپتیا او خاموشی په دې فضا کښي مي تر څو دقیقو مزل وروسته په کراره دا غا د اپارتمان دروازه ور وټکوله. اغا په داسي حال کښي چي زما د ورتگ هیڅ تمه او توقع يي نه لرله، تر لږ ځنډ وروسته و دروازې ته راووت.

– اغا سلام علیکم!

– هو هو هاروٓنه ته يې! راځه راځه په خیر راغلې!

– ته خوٓني ته در ځه. زه به دستي یوه پیاله چای در دم کم. اغا په دالېز کښي و ویل.

– چایو ته هیڅ حاجت نسته.

– چایي د سترېا د پاره بدي نه دي.

– ښه نو تاسي راسئ کښېنئ، زه بې په خپله دم کم.

– سمه ده. د دې ایستوپ په لگولوٓ خو پوهېږې؟

– ښخي په پوهېږم. آ بله پلا مې څو واره چایي پر دم کړې.

چایي مې په ترموس کښې تر اچولو وروسته و خوني ته راوړې.

– اغا حالات څنګه دي، په راډیوګانو او تلوېزنو کښې خو یې ډېر خطرناک او کړکېچن ښیي؟

– د راډیوګانو خبرونه او تبصرې هم بې څه نه دي. د چارآسیا له خوا کله کله د توپو او نورو درنو وسلو ږغونه آروېدل کیږي؛ خو په ښار کښې دننه، خاصتاً په دې نېژدې شاوخوا کښې څه خاصه او مهمه پېښه نه ده سوې. د جنګ شرایط دي. د توپو او راکټو ږغونه څه نوي خبري نه دي.

اغا د کورنۍ د غړو، دوستانو او شناخته ګانو د روغتیا او سلامتۍ تر پوښتنو وروسته په نسبتاً اندېښناکه لهجه وویل:

– ته څنګه په دې خطرناکو حالاتو کښې راغلئ یې؟!

– د خدای پامانۍ دپاره راغلئ یم. په خیر آخواوو ته روان یم.

– له دونه اوږدې لارې څخه یوازې زما و لیدو او خدای پامانۍ ته حاجت نه وُ، خو اوس چې راغلئ یې او پر ځان دې دونه لوی زحمت تېر کړئ دئ، کور دې ودان. خدای دې کامیابه او سرلوړی لره! ته خو به ولاړ سې، د کور او کهول مسأله به دې څنګه حلیږي؟

– انشاء الله د هغې د ښېولو کار هم په یوه – یو نیم کال کښې کیږي.

– له ماینې او اولادو سره که سړی وچه خوړي یا لنده هیڅ پروا نه کیي، خو یوازې پرېښووَل یې ښه خبره نه ده.

– دمګړی خو هیڅ مشکل نسته. مور ور سره ده. ټول سره پوښي دي. د احسان دی اپارتمان مو و څنګ دئ. د نورو دوستانو کورونه هم تر څو میترو زیاته فاصله نه لري.

– د خپلوانو او دوستانو نیژدېوالی خو ډېره ښه خبره ده. سره له هغه هم د هر کور مشر ځان ته خپل ځای لري. باید انتهایي کوښښ وکې، چې ژر تر ژره یې درولې.

– انشاء الله داغسي کوم.

شپه تر ناوخته د کورنۍ د غړو او په کراچي کښې د دوستانو او افغانانو د ژوندانه د حالاتو په اړه خبري اتري وسوې. سبا سهار مې د خور او نورو دوستانو د لیدو په هیله د ښارنو او خیرخانې لاري په خوله ورکړې. غرمه مې له خور سره په ښارِنَو کښې تېره کړه، خو بېله ځنډه مې د خوابښې، خوښینو او ځینو خسرخېلو د لیدو په خاطر ځان و خیرخانې ته ورساوه. ماپښین قضا مهال مې د راتګ اجازه ځني وغوښتله. سپینسري خوابښې مې د دوو خوښینو او څو نورو خپلوانو په بدرګه وویل:

– وی وی دا څنګه راتګ وُ؟ له هغه کلاچي څخه راغلئ یې؛ مګر یوه شپه هم نه تېره یې؟!

– متأسفانه شپه نه سم کولای؛ سبا که ژوند وُ بیرته په خیر رهي کېږم؛ غواړم په لار کښې د پلار یو و نیم سوداوي هم واخلم.

له خیرخانې څخه مې په یوه شریکي تکیسي کښې اول ځان و دِه آوُغانانو او له هغه

ځایه څخه بیا د مکروریانو د موټرانو و اډې ته و رساوه. د «فروشگاه بزرگ افغان» و مخ ته مي له دوکانو څخه څه غوړي، وچې شیدې، چایې، اګۍ، بوره او عسل رانیول؛ او په ځغاسته بیرته وکور ته ولاړم.

– دا دي څه راوړه؟

اغا د سوداوو په لیدو سره سمدلاسه راپرغ کړه.

– ستاسي د ضرورت ځیني شیان مي راوړه.

– دلته خو هر څه سته.

– په دې چې تاسي ته یې را وړل ګران دي، نو مي یو څه نور هم راوړل. اوس غواړم یو ګېلن تېل هم راوړم، چې د خلاصېدو په حال کښي دي.

– ته راسه کښېنه. چې خلاص سوه، زه یې په خپله راوړم. ته فکر مه کوه، زه تر دې ګېلن داوبو ډېر درانه سطلونه را خېژوم.

– زه پوهېږم؛ خو اوس چې زه دلې یم، ستاسي و راوړلو ته څه حاجت دئ.

په اغا کښې که څه هم د زړښت، جنګ او ناخوالو له اسیته پخوانی واک او ځواک نه و پاته، خو بیا هم له خپلې پخوانۍ کاکګۍ څخه نه و لوېدلئ. نه یوازي یې هري دوې روځي وروسته د خپلې اړتیا وړ اوبه د بلاک له عمومي نل څخه تر دریمه منزله پورته کولې، بلکي د یو و نیم بې کسو او بې وسو همسایګانو د ضرورت وړ اوبو په خېژولو کښې هم کومک کاوه. اغا د جرأت، زړورتیا، سپېڅلتیا، رېښتینوالي، استغنا، زغم، مهربانۍ، عاطفې، سخاوَت او ډېرو نورو لوړو انساني ارزښتو ځلانده سیمبول و.

– چې خامخا یې راوړې، نو دغه نیژدې دوکان ته ورسه. اغا د دیځ له بلاک څخه څو ګامه آخوا د سړک د غاړي و یوه دوکان ته اشاره وکړه.

– هو را مالوم دئ. له هغه دوکانه یې راوړم.

د تېلو ډک ګېلن مي د اغا له لارښووَني سره سم د کور په برنډه کښي کښېښود؛ ځکه تر اوسه لا د ایستوپ ټانکۍ ډکه وه. اغا وختي لا شنې چایې دم کړې وې. زما له کښېنستو سره یې سمدلاسه د چایو ترموس او پتنوس را وړاندې کړل؛ او په دې ترتیب زموږ د مجلس دوهم پړاو پیل سو. د کابل د خپلوانو تر لنډې پوښتني او ګروېږني وروسته خبري بیرته د کابل د امنیتي حالاتو و خوا ته وڅرخېدې.

– اغا څه فکر کوئ، د کابل حالات به څنګه سي؟ دا پوښتنه مي په داسې حال کښې وکړه، چې د کابل له جنوبي برخو څخه د لویو او درنو وسلو هیبتناک درزهار د مکروریانو په شاوخوا سیمه کښي زوروَري ازانګې کولې.

– امنیتي حالات خو ته په خپلو سترګو ګورې. روځ په روځ پسي خرابیږي. پخوا به د طالبانو او مسعود د عسکرو تر منځ یوازي د پغمان او ارغندۍ په سیمه کښي جنګونه کېدل. په دې وروستیو وختو کښي د چارآسیا له خوا هم د جنګ او حملو فشار ډېر سوئ دئ. خلګ وایي طالبان کله کله تر کلاچې او بني حصار پوري هم مخ ته راځي.

– ما چي نن ښار ولېدئ، آدرې میاشتي مخکي حالت لا نه ور پاته. د خلګو ښې الوتي او روحیه ډېره کمزورې ښکارېدله. دوستانو هم د احتمالي جنګو او چورو چپاو خبري کولې.

– د کابلیانو اندېښني بېځایه نه دي. ته ګورې چي د توپو د ګولیيو ږغونه د کورو هینداری شرنګيي. ما ته داسي نه ښکاري، چي د کابل د پاچهۍ مدافعان به تر ډېره مقاومت وکي؛ ځکه کابل ښار پخوا لا له درو خواوو څخه محاصره ؤ. اوس دا محاصره وار په وار پسي تنګیږي.

– نو ولي یو څه مؤده زما سره و کراچي ته نه ځئ. مخسد مي دا دئ، چي لږ تر لږه د حالاتو تر روښانه کېدو پوري ځان له کابل څخه ګوښه کئ؟

– دمګړی خو په کابل کښي خیر و خیریت دئ. اوبه، ډوډۍ، تېل او هر څه پیدا کیږي. یا ته سوه توپونه او بمونه، چي زه یې له ږغو سره بېخي عادي یم. که څه هم د کابل د خلګو تشویشونه او پرېشانۍ بالکل پر ځای دي، خو زه شخصاً فکر نه کوم، چي د مجاهدینو د راتګ د روځو په شان به دا پلا بیا په کابل کښي خوَن خرابه وسي. زه باور لرم چي خدای تعالی به هر څه په خیر تېر کي. له هغه وخته چي عطایي صاب له کوَتي څخه راغلئ دئ، همېشه دوې – درې روځي وروسته راځي؛ او د دوستانو او اشنایانو په حال مي خبریي. یو و نیم نور دوستان هم اوس بیرته کابل ته راغلي دي. کله کله پر هم ما را چکریږي. څه مؤده وروسته به دي مور هم بیرته په خیر راسي.

– ښه نو زه هم ډېر نه ټینګېږم. په دې چي تاسي اوس هم پر خپلو پخوانییو خبرو ټینګ ولاړ یاست. حتا د څو روځو سیر او سیاحت دپاره هم د پاکستان نوم پر خوله نه اخلئ.

– یا یا پاکستان ته هیڅ ضرورت نسته. انشاء الله ارامي او کراري تر سترګو نیهامه ده. ته او د کورنۍ نور غړي زما په باره کښي هیڅ اندېښنه مه کوئ. ما په کابل کښي تر دې ډېري سختي او بدي روځي تېري کړي دي. تا دي خدای په خیر و رسیي. کور دي ودان چي له هوغه کراچي څخه، هغه هم په دې جنګي حالاتو کښي، تر دې ځایه زما و لیدو ته راغلې. تاسي او ښځمني مو ټول کوښښ وکئ، چي همېشه مو مور خوشاله او راضي وساتئ؛ قدر او عزت یې وکئ. تاسي ټولو ته مالومه ده، چي خوارکۍ د جنګ او وحشت ناخوالو ډېره کړولې ده.

– د مور په باره کښي تشویش مه کوئ. لوی او کوچنی یې ګرده قدر او عزت کیي.

– لکه څنګه چي مي پخوا هم در ته ویلي دي. که دا خوَنه تر چته پوري په طلاوو او پونډو را ډکه هم کې، بیا هم ما نه خوشاله کیي. که غواړې چي ما همېشه خوښ او خوشاله و ساتې، نو همېشه د علم او پوهي په حاصلولو سره د خپل وطن و خدمت ته ملا وتړه.

– تر اوسه مو داغسي کړي دي، انشاء الله تر دې وروسته به هم داغسي کوو.

– سهار وختي ځي. ورسه نور سر کښېږده. اغا تر څو شېبو چپتیا وروسته و ویل.

زه هم ولاړ سوم؛ او په یوه بله خوّنه کښې وغزېدلم.

سهار په داسې حال کښې، چې ښار لا د تیارې او چپتیا په غېږ کښې نغښتې ؤ، له خوبه را ویښ سوم. اغا تر ما لا وختي ویښ ؤ.

– ګومان کوم اوس لا ډېر وختي دئ. بار و بنه هم نه لرې. ډېر تلوار مه کوه.

– سمه ده.

– اوس به نو ور و وزم. د موټرانو ږغوّنه هم آرو ېدل کېږي. تر یو ګړي انتظار وروسته مي وویل.

– اوس لا وختي دئ، خو چي ته ټینګار کیې نو څه نه سم ویلای؛ مګر له دې نیژدې سړک سره دا مهال د ټکسي پیدا کول اسانه خبره نه ده. بهتره ده و هغه لوی چوک ته ور و وزې. هورې د روځې له خوا ټکسیان پیدا کېږي.

– زما هم زړه دئ، چي هورې ورسم. دا ګړی د خدای پامان. د اغا تر لاس مچولو وروسته مي وویل.

– څه الله دي مل سه. ټولو ته مي سلاموّنه وایه.

کوّچنکۍ بسته مي په لاس کښې را واخیسته؛ او په کراره له کوره را ووتلم.

پر شاوخوا سړکانو خوّ څه، چي آن د مسلخ په لوی چوک کښې هم خورا سهمناکه خاموشي وه. عجبه ده په کور کښې د موټرانو ږغوّنه آرو ېده کېدل؛ خوّ اوس هر څه دم و دوّد سول؟ تر پینځلسو – شلو دقیقو انتظار وروسته مي څو واره دا جوّمله له ځان سره تکرار کړه. ښایي هغه ږغوّنه به د نظامي موټرانو وه. یوه شېبه وروسته مي دا خیال و زړه ته را تېر سو. البته، پر لارو او سړکانو د خلګو او موټرانو د نه لیدل کېدو دلیل له ورایه څرګند ؤ. د یوې خوا لا تر اوسه پر ښار د تیارې تور څادر غوړېدلئ ؤ؛ او له بلې خوا د جنګي حالاتو له بیرې حتا په روڼا روځ هم ښاریانو و غیرضروري تګ راتګ ته زړه نه ښه کاوه. بالاخره و دې نتیجې ته و رسېدم، چې ټکسیانو ته د بېځایه انتظار پر ځای کرار کرار په پښو روان سم. په حقیقت کښې خوّ ټوله لار تر شلو دقیقو زیاته نه وه. که د جنګ او ناامنۍ شرایط نه وای، شاید هیڅکله مي د داسې لنډ سفر دپاره د ټکسي نیولو سوچ هم نه وای کړی. خیر، یو زړه مي سل زړوّنه کړل؛ او د مسلخ و مخ ته تېر سوئ سړک مي په خوله ورکئ. د سړک په راسته خوا کښې د دولتي ادارو ګروّېو ودانییو او د کابل د وچ رود و چپې خوا ته د زړو مکروریانو کنډواله اپارتمانو د هر لاروي په زړه اوّخې نښیستله. د محموّد خان تر پله پورې د سړک و دې او هغې خوا ته ښېله تورو کنډوالو او وحشتناکو جنګي اثارو بل هیڅ نه تر سترګو کېدل. هره پلا چي به مي سترګې ور واوښتې، له بیرې به و لړزېدم. البته، د تراه او وحشت د دې صحنو تر څنګ مي د سولې او ارامۍ روځې – هغه وختوّنه هم را په یاد سول، چي پر دې سړکانو به شپه او روځ د خلګو او موّټرانو له تګ راتګ څخه رَوّ نه کېدئ. د آهوّ بوټو د شان او شوکت او د ښکلو مکروریانو د شنو چمنانو د هارو بهار روځې مي و سترګو ته جګې و درېدلې.

د حیرت او بېهوښۍ په عالم کښې ډوب وم، چې پل محمود خان ته نیږدې نابېره د توپو او ټانکو وحشتناکو ډزو په شاوخوا ساحه کښې زوروري ازانګې وکړې. د درنو وسلو درزهار او غړمبهار په دغو ډاروونکو شېبو کښې مي یو جګ نرۍ سرې پېري غوندي و مخ ته زرغون سو، چې پر لنګوټې سر بېره یې غټ پټو پر ځان پېچلئ ؤ؛ او وروسته مي داسي اټکل وکئ، چې د ځرمه کورو یو اوسېدونکی به ؤ. زما په لیدو یې بې اختیاره را ناره کړه:

– « بیادر می بینی چه حالست؟ از دست دو – سه تا دزد و آدمکش ګل شار د عذابست. بی ناموس ها نه نګاه کده مېتانه نه اېلا می کنه. برو بیادر زود کو که صدای فیرا نزدیک شده می ره. ما خو د ای زندان افتیدیم، خدا نخاسته شما را چیزی نشه، که مسافر استین.»

– بسیار تشکر. د دې لنډ جواب په ویلو سره مي د جلال آباد د اډې پر لور ګامونه ور چټک کړل، چې که په دې توګه د سر خوندي کولو یو مناسب ځای ومومم. په اډه کښې له لیري دوه اووه – اته سیټه ډاټسنان ولاړ وه، خو د مساپرو هیڅ ګڼه ګونه نه ښکارېدله. په یوه موټر کښې دوه – درې سپاري له موټروان او کلېنر سره غلي ناست وه. مالومېدله، چې د درنو وسلو هیبتناکو ږغو نه یوازي زه، بلکي د موټروان او کلینر په شمول نور مساپر هم ډېر وار خطا کړي وه. داسي دم و دوړ ناست وه، چې تا به ویل په یوه کښې ساه نسته. د پېښور د کابل اډې پر خلاف، په جلال آباد اډه کښې د وحشتناکو ډزو له شامته د پېښورروالا، پېښورروالا هیڅ چغې او نارې نه وې. زه هم ژر تر ژر و موټر ته ور پورته سوم؛ او تر سلام اچولو وروسته دې غوندې په پټه خوله کښېنستلم.

سختې او دردناکې شېبې وې. نه د ډزو وحشتناک اوازونه کرارېدل؛ او نه په درو – څلورو مساپرو د موټر د حرکت کولو تمه وه. په دغو اندېښنو او تلوسو کښې مو نابېره یوه سپین رنګه ټویټا و مخ ته ودرېدله. څلور کسه ځني را کښته سول. ټویټا د سترګو په رپ کښې بیرته د محمود خان پله و خوا ته ولاړه. سپاري یې بېله ځنډه زموږ د موټر وخوا ته راغلل؛ او په را رسېدو سره یې زموږ د انتظار لحظې هم ختمې سوې. موټر په چټکۍ سره د جشن له سیمې څخه و وت. کرار کرار د رڼا پر پشتې هرې خوا ته وزرونه وغوړول.

له پلچرخي سره د کابل حکومت امنیتي پوستې د تلاښۍ کولو زحمت و نه ایستئ؛ یوه عسکر له لیري څخه د توپک د میل په ښورولو سره د تېرېدو اشاره وکړه. مساپرو او موټروان هم ګردو له خدایه دغه غوښتل.

د ماهیپر پر کږه وږه لار د مقابل لوري د ترافیکو هیڅ ځرک نه ؤ؛ په دې خاطر نو موټروان هم و اکسلېټر ته پوندِه ورکړه. دا پېچلې او سهمناکه دره – هغه ځای چې سره لښکر په خپل ټول عسکري طاقت او قدرت سره د سرلوړو او خپلواکۍ مینو افغانانو له بېباکو او زړورو بریدو څخه نه سوای ژغورلای؛ او پاکستاني پوځیانو هم د جلال آباد د جنګ پر مهال د خپلو مزدورو ډلو ټپلو په ټول کوښښ نه سوای بندولای، نن په داسي

چتکی او اسانی تېره سوه، چي تا به ویل پر لو او هواره لار مزل کوؤ.

لس – پینځلس دقیقې لا نه وې تېري، چي موټر د سروبي و سیمي ته ورسیدئ. د سړک و دواړو خواوؤ ته د توپکیانو کوچنی کوچنی ډلي گرزېدلې. د سروبي تر بازار څو سوَه گامه لاندي د توپکیانو یوې بلې پینځه – شپږ کسیزي ډلي، د توپک د میلې په ښوروَلو سره، د موټر د درولو اشاره وکړه. موټروان هم سمدلاسه بریک و واهه. یوه جگ نري ځوان، چي توره لنډی ږیره یې لرله؛ او د توري زرین لیکي لوُنگی نسبتاً اوږده شمله یې پر چپه اوږه و شا خوا ته اړولې وه، د موټر ښوَېدوٚنکې دروازه را خلاصه کړه.

په موټر کښې پر ما سربېره څو تاجیک او اوُزبک مساپر هم ناست وه. تلاښي کوّنکي ځوان هر سپاري ته څو واره د خریدار په سترگه وکتل. دا چي پر نورو مساپرو څه تېرېدل، یو خدای خبر وُ، خو زما په زړه کښې تر دې دمه د بیري او ډار هیڅ اثر نه وُ.

څه سر به موٚ خوړوَم. تلاښي کوّنکي توپکي د سپاریو تر عمومي کتني او تلاښی وروسته زه او یو بل سپاري له موټره کښته کړو. هغه یې په دوو – درو دقیقو کښې بیرته و موټر ته پرېښود؛ وروسته یې زما څخه په دې دَوَل استنطاق شرو کئ:

– کجا میری؟

– پشاور میرم.

– از کجا استی؟

– از کابل استم.

– از کجای کابل.

– از کارته ء مامورین.

چوٚرت مي و واهه که ځان د کندهار اوسېدوٚنکی وښیم، نه گانه په څه بله ټکه کښېنوزم. له نورو سپاریوٚ سره یې پاړسي ویل، ما هم په پاړسي جوابوٚنه ورکړل.

موټروان، کلېنر او نوروٚ سپاریو هر څه لیدل او آروېدل، خو بتانو غوٚندي یې تر خولو هیڅ نه وتل.

د خدای فضل وُ، کلینر تر اوسه لا د سپاریوٚ کرایه نه وه اخیستې؛ ځکه یې نو زما و پر ښوولو ته هم په اسانی زړه نه ښه کاوه. که څه د لاري ملگرو مي د خلاصوٚن دپاره هیڅ راز کومک او همکاري و نه کړه، خو زما د موټر په انتظار زړه ډېر پوړه وُ.

توپک والا چي بله پوٚښتنه وکړه. ما یې سمدستي په پښتو جواب ورکئ. سره له هغه هم د تنگوَلو او ازارولو لړی روانه وه. کله بې په پاړسي او کله بې په پښتو پوچ او بې مانا سوالوٚنه کول. تر هغه وروسته چي خدای ناترسوٚ د پښتو او پښتونولی پروا هم و نه کړه، په ریشتیا سره پر ژوند و بېرېدلم. خدای خبر چي رنگ به مي پر څه حال وُ، خو وجوّد مي داسي سوړ او بې واکه سوٚ، چي تا به ویل په رگوٚنو کښې مي وینه وچه سوې ده. دا مهال مي هره شېبه د کابل – کندهار پر لار دا احسان لالا او نورو کنداري مساپرو د تېښتولو پخوانی کیسه او د کابل د تنظیمي جگړو په دوران کښې د بل ورور، بنیامین، د تریتم کېدو وحشتناک داستان یو په بل پسې په مغزو کښې دوري هوري تېرېدل.

د بېچارګۍ او بې وسۍ په دې عالَم کښې مې خدای تعالی نابېره په کراچۍ کښې د فابریکې د پېژندګلوۍ و کارټ ته پام واړاوه، چې حتا پاکستاني پولیسو او پوځیانو بې هم په لیدو سره هیڅ ډَوَل ازار نه را کاوه. د هویت دا کارټ مې اصلاً د لارې په اوږدو کښې د پاکستاني پولیسو او پوځیانو له احتمالي ازار څخه د خلاصون په خاطر له ځانه سره را اخیستئ وُ؛ او په دې مې هم ښه سر خلاص وُ، چې د افغانستان په اوسنیو شرایطو کښې هم تر یوه رسمي پاسپورټ په کمه نه دئ.

– وروره څه کیسه ده، چې ناحقه مو درولئ یم. دغه مې په کراچي کښې د وظیفې کارټ دئ. تقریباً پینځه کاله کیږي، چې له ماشومانو سره په کراچي اوسیږم؛ د سپینږیري پلار و پوښتنې ته راغلئ وم؛ اوس بیرته په کراچۍ کښې و خپل کور ته روان یم. نه پوهیږم چې لوی ځښتن مې مړژوانده روحیه څنګه د بېباکو اتلانو په څېر را لوړه کړه. بې جرأتي، بېره، مرګ او داسې نوري بزدلانه خبري مې ګرده په غیرشعوري ډَوَل له زړه او مغزو وتښتېدې.

استنطاق کوُنکي توپکي، په داسې حال کښې چې د هویت انګریزي کارټ کله پورته و کښته او کله مخ و شا ته اړواه؛ او په دې مې ښه سد رسېدئ، چې په یوه توري یې هم شک نه وُ، په پای کښې په نسبتاً آمرانه لهجه وویل:

– واخه څه!

د کارټ په تر لاسه کولو مې د راحت او خوښۍ ساه وایستله؛ او په مینه مینه بیرته موُټر ته ور وختلم. څو شېبې وروسته د تلاښۍ کوُنکي ډلې یوه توپک والا د توپک د میلې په ښوروَلو سره د موټر د حرکت کولو اشاره وکړه؛ او په دې توګه هغه توره بلا په خیر او عافیت تېره سوه، چې هیچا، په تېره بیا ما یې د لیدو او ضرر رسولو سوچ نه کاوه. دا چې د بلا خوله د چا په مخلصانه دوعاوو بنده سوه، په قاطعیت او اطمینان سره څه نه سي ویل کېدلای، خو په دې کښې هیڅ شک او شبهه نه وه، چې د کراچۍ د فابریکې د هویت کارټ ظاهراً د دې بلا له تورو او خوُنړیو منګولو څخه زما د ژوند په ژغورنه کښې ډېره ارزښتناکه برخه واخیستله. په کراچۍ کښې مې والدې، میرمنې، اولادو او نورو دوستانو ته د دې خطرناکې بلا د سهم او وهم کیسه وکړه. ټولو د شکروُنو په ادا کولو سره په ګډه وویل: بلا وه برکت یې نه وُ.

***

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- ځیني خلک تر هغو پوري خپل زړه نه سي پیدا کولای څو چې خپل سر ئې نه وي بایللی.
- د کتابتون موجودیت د دې خبري یوازنی شاهد دئ چې خلک لا تر اوسه هم فکر کوي.
- هغه دښمن چې تا ماتي ته مجبوره کوي په خپله له ماتي څخه سخت بېرېږي.
- زخم په مهربانۍ سره ژر جوړېږي.
- باید په یاد ولرو چې خوښي یو سفر دئ نه د سفر هدف.

عبدالظاهر ځرک

# جلب او احضار

عسکري خدمت په افغانستان کي د ډېره وخته جبري وو او د هغه وختو په اساسي قانون کي دا ماده ذکر وه، چي د افغانستان هر فرد مجبور او ملکف دئ، چي عسکري خدمت تر سره کړي البته د قانون د اصولو سره سم.

زما چي په یادېږي، ځوانان به د عمر پر دوه ویشت کلنی عسکري خدمت ته جلبېدل، تر دوه کاله عسکري وروسته به ترخیص ورکول کېدی او دا امر د افغانستان ټولو اتباعو پر ځان منلی وو. په کندهار کي به د اوسني ارګ په سیمه کي پر ټاکلي وخت د اطرافو څخه ځوانان په ډلو-ډلو د خپلو بسترو سره جمع کېدل، موټران به ورته ولاړ ول او حکومت به نورو ولایاتو ته استول. د نورو ولایاتو عسکر به ئې کندهار ته را استول او عسکري به ئې کول. دا پروسه د ثور تر کرغېړني کودتا پوري په ښه ډول روانه وه. که څه هم عسکري خدمت ډېر مشکل او آسانه کار نه وو. د (۱۳۵۷ ل.) کال د ثور تر کودتا وروسته په هیواد کي کورنۍ جګړه پیل سوه او عسکرو ته زیات خطر متوجه سو د وخت په تېرېدو سره جنګونو شدت پیدا کی او د شوروي اتحاد سرې لښکري هم پر افغانستان راماتي سوې.

د شوروي اتحاد تر تجاوز وروسته د مجاهدینو پله درنه سوه او اکثره عسکر د مجاهدینو خوا ته ور اوښتل اکثرو به خپلې اسلحې هم ورتسلیمولې. عام اولس هم د مجاهدینو ملاتړ کاوه. دلته نو د دفاع د وزارت د عسکرو بیلانس ډېر فرق وکی، هیڅوک په خپله خوښه عسکري خدمت ته نه حاضرېدی. که څه هم تقریباً یو سل او شل زره روسي عسکر په افغانستان کي د حکومت د دفاع له پاره جنګېدل. حکومت مجبور وو چي په زور او جبر سره ځوانان عسکرۍ ته په زور واستوي.

نو ئې په بازارو کي مؤظف عسکر ودرول کور په کور تلاښي شروع سوه، له هر ځوان څخه ئې د اسنادو پوښتنه کوله او هغه به ئې کتل که به د چا اسناد سم نه وه موټران به ورته ولاړ وه او ځای پر ځای به ئې ځوان موټر ته پورته کاوه. کمیسارۍ ته به ئې بوتلی هلته به ئې چره کی او د هغه ځای څخه به ئې نورو ولایاتو ته د جنګ و جبهې له پاره استوی. دغو ځوانانو عسکري نه کول. هورې به مجاهدینو ته ورتسلیم سول او د مجاهدینو په لارښوونه به پاکستان ته واوښتل یا به بیرته خپلو کورونو ته راغلل.

کله چي به کور ته راغلل، په کورو کي ئې پټ ځایونه ځان ته جوړول او هورې به پټېدل. په مقابل کي حکومت د کورو او دوکانو تلاښۍ شروع کړې په هغو منطقو کي چي حکومت

پکښي حاکم وو په هفته کي دوه یا درې واره به حتمي تلاښي کېدل او په ځوانانو او اسلحو پسي به ئې کتل.

د ښار خلک او ځوانان اکثره له دغو تلاښیو ځخه په تنګ سول او پاکستان ته مهاجر سول، چي ډېری له هغه ځای ځخه امریکا او اروپا ته د خپلو کورنیو سره ولاړل.

دې کار حکومت ته چنداني ګټه نه وکړه مجبور سو، د ۲۲ کلنۍ ځخه ئې ۱۸ کلنۍ ته د ځوانانو سن راکښته کړ او پر دغه سن برابر ئې ځوانان کشول، چي دې کار بیا ډېر تنکي ځوانان له هیواد ځخه فرار کړل.

تر دې وروسته حکومت یو بل اعلان هم وکی، چي احتیاط ئې باله. هغه کسان چي یواري عسکري کړې وه او سن به ئې تر ۳۵ کالو تجاوز کړی نه وو دا خلک ئې هم جلب کړل، چي د ډېرو خلکو د تشویش او فرار سبب وګرځېد. دا خو معلومه خبره ده، چي هر عمل عکس العمل لري، هغه خلک چي ډېر مجبوره وه او دلته ئې معاملې وې یا ئې د پاکستان وس نه درلودی نو دوی به له عسکرۍ ځخه د خلاصون په خاطر قسم قسم لاري سنجولې، هغه کسان چي د احتیاط تر دوره لاندي وه، ږیري به ئې په رقم رقم دواوو وهلې چي سپینه معلومه سي، سپین ږیري به عسکرو چنداني نه راګرځول او یا به ئې جعلي اسناد جوړول، په تذکره کي به ئې لاس وواهه او لوړ سن به ئې نوشته کی یا به ئې ترخیص جوړ کړ نوي ځوانانو به په تذکره کي لاس وهنه وکړه. کم سن به ئې ولیکی او یا به ئې د مکتب تقلبي کارتونه جوړول، د مکتب شاګردان هم له عسکري ځخه خلاص ول. داسي به هم پېښنه سوه کم وخت چي به متعلمین له مکتب ځخه فارغه کېدل، حکومتي عسکرو به مکتب محاصره کړ او ټول هلکان به ئې لاس تړلي عسکري خدمت ته واستول او د مرګ خولې ته بې واچول. په دې کار کي به شوروي مشاورینو هم برخه اخیسته. د اوسني ظاهرشاهي لېسي چي هغه وخت ئې نوم البیروني لېسه وه، د دې لېسې مدیر نکل راته کاوه چي زموږ مکتب هم محاصره سو یو سپین سرې ښځه چي زوی ئې عسکرو نیولی وو، شوروي مشاور ته ودرېدل او ورته وې ویل هاشورویه! ستا قربان سم دا زما زوی خو را ایله که. د جعلي اسنادو په ترتیبولو کي داسي ماهرین پیدا سول چي د تذکرې، یا ترخیص د اصلي ټاپې او د دغو ماهرینو د ټاپې هیڅ فرق نه کېدی، په داسي حال کي چي دوی به دغه ټاپه په لاس رسم کړې وه.

زه چي د وطن په دغه ناوړه حالاتو کي تر پایه دلې وم او د جلب او احضار د جبري کشولو سره زما سن هم پر عسکري برابر وو نه پاکستان ته مهاجر سوم او نه مي عسکري وکړه. او تر پایه مي په جعلي اسنادو ورسره ووهل، آخر چي ټوله لاري راباندي وتړلي سوې، د ملايي مجلا مي جوړه کړه او په کابل کي مي امتحان ورکړ. د مسجدو ملایان له عسکري خدمت ځخه معاف ول او د یو کوچني مسجد ملا مي ځان ورمعرفي کړ او دلته د کندهار په محکمه کي مي شرعي وثیقه جوړه کړه، کابل ته ئې ولېږلم.

د شئون اسلامي په نامه وزارت ته وراغلم، وزير صاحب کميسون جوړ کړ چې ډېر جيد او زبده علما ول او ټول د دولت طرفدار خلک ول زه چې نه ملا وم او نه مې ديني مطالعه درلوده، خو د دولت پاليسي دا وه چې د ملا او طالب په نامه قشر بايد دوی تشويق کړي، چې پاکستان ته ولاړ نه سي او د خپل وطن په مساجدو کې امامت وکړي زه ئې کامياب کړم. د ملي دفاع وزارت د تشکيلاتو پر رياست ئې مکتوب راکړ د تشکيلاتو رياست د کندهار پر کميساري مکتوب راکړ. د کندهار کميساري مکتوب و مانه او ما ته ئې داسي سند راکړ چې د عمر له پاره زه د عسکري له دوارو خدمتو څخه معاف سوم. اوس نو ګويا زه د يو قانوني سند خاوند سوم او په ښغمه زړه په بازار کې ګرځېدم. د دې سند ارزښت په هغه وخت کې د ځوانانو په منځ کې بيخي ډېر وو او د ډېرو ځوانانو به کست راکېدی او ډېرو به ويل که په پنځه لکه افغانۍ داسي قانوني سند زموږ لاس ته راسي لا هم خوشاله يو.

د حيرانۍ خبره خو دا ده چې ما ته دا سند مفت تمام سو. په هغه وخت کې د رشوت او واسطې فرهنګ نه وو عام او ټوله دولتي مامورينو خپله قانوني پروسه طی کوله او نه د کم مامور په تندي پوه سوی يم، چې د پيسو خواهش راڅخه وکي. زه تقريباً يو کال په دې سند وګرزېدم په دې وخت کې جنرال نورالحق علومي د کندهار والي او تنظيمه رئيس وو، چې حکومت عام او تام صلاحيت ورکړی وو.

حکومت په دې عقيده وو که په کندهار کې جنګ آرام سي په ټول افغانستان کې به جنګ ختم سي. نو جلب او احضار هم د جنګ اصلي عامل وو. ډېر ځوانان د مجاهدينو صفونو ته ورتلل او هغه ئې تقويه کول جنرال علومي (اوسنی داخله وزير) د جمهور رئيس ډاکټر نجيب الله څخه يو فوق العاده امر واخيستی، چې د ټول کندهار ځوانان ئې له جلب او احضار څخه خلاص او معاف کړل. دا اعلان د ښار په ځوانانو کې ښه استقبال سو او ډېر ځوانان ښار ته راغلل د مجاهدينو اطاقونه هم اکثره تش سول، د پاکستان څخه هم اکثره ځوانان راغلل او دلې ئې کارونه شروع کړل.

پر مجاهدينو د علومي دا ابتکار بد تاثير وکړ. په هغه وخت کې يوازې ښار د حکومت په ولکه کې وو شاوخوا ټوله د مجاهدينو تسلط وو. مجاهدينو ځينځيران واچول او ځوانان به ئې ښار ته نه پرېښول او په ضمن کې ئې پر ښار خوراکي مواد حتی تر شلومبو[1] پوري بند کړل چې دې کار مجاهدينو ته بې له تاوانه ګټه و نه کړله او د خلکو منفور وګرزېدل. پسله څه وخته د ډاکټر نجيب الله حکومت سقوط وکړ او ټوله ښارونه مجاهدينو ونيول، چې ګران هيواد د يو لوی بحران سره مخامخ سو.

---

[1] شلومبې په هغه وخت کې د سنځري څخه ښار ته راتلې. يو څو تنو سپين سرو ښځو به په غړکه کې شلومبې د سنځري له کلي څخه راوړلې او د ښار په هرات دروازه کې به ئې خرڅولې. دې ته ئې د غړکي شلومبې ويلې چې اوس ئې هم خلک په دغه نامه بولي. د مجاهدينو به چرې په لاس کې وې او د ښځو غړکي به ئې ورڅيرلې.



او سرعت سره مخ ته بوزي. په دا سبا مي د شنختي متن وکيښ او کاکا اسدالله ته مي ورکړ. هغه د کندهار د مشهور خطاط ښاغلي علي احمد قانع سره چي د مرحوم ميرزا غلام علي قانع زوی او اوس په ژونديو خطاطانو کي د نامه څښتن دئ، د شنختي د خطاطي کولو موافقه وکړه. د خير کار خدای تعالی پر مخ وهي په څو ورځو کي د شنختي د خطاطۍ او کيندلو او د قبر د ودانولو کار بشپړ سوا او پاته دي نه وي چي کاکا اسدالله خان او ما هره ورځ د دغه کار جريان له نژدې څخه تعقيباوه. بالآخره مو د اکتوبر پر يوولسمه د مائيگر پر څلورو بجو د حبواخندزاده پر قبر په داسي حال کي چي کاکا اسدالله هم حاضر وو، د کندهاريو منورينو او فرهنگپالو يوه درنه غونډه جوړه کړه. په غونډه کي د کلام الله مجيد د څو آيتونو تر قرائت وروسته انجنير شېرشاه رشاد، ما (محمد معصوم هوتک)، ښاغلي استاد حيات الله رفيقي، ښاغلي استاد احمد صميم ويناوي وکړې. د حبواخندزاده پر ژوند او علمي مقام او د دغي مقبرې او نورو مقبرو د ودانولو پر اړتيا مو خبري وکړې. له کاکا اسدالله، د اقراء ساختماني شرکت له مسئول ښاغلي رفيع الله پوپل څخه مو مننه وکړه چي د دغي وياړلي چاري په سرته رسولو کي ئې خولې تويي کړي دي.

زه چي اوس دا کرښې له کندهاره څخه په زرو کيلومتره ليري په کاناډا کي کاږم، له دې اسيته ډېر خوشاله يم چي د دغي پخوانۍ ارزو تحقق مي پخپل ژوند کي وليد. پاک خدای ته التجاه کوم چي د وطن منورينو ته دا مجال او توفيق ورکړي چي د خپلو مشاهيرو د نامه په راژوندي کولو کي نوري هم خپلي هڅي گړندۍ کاندي.

محمد معصوم هوتک

آشاوا - انټاريو - کاناډا

۲۸ مه د اکتوبر ۲۰۱۵ ع







# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department




چاپ: ملالی مطبعه